# بسم الله الرحمٰن الرحیم

# دمؤلف وړاندوینا

ثنا او ستاینه دی خاص خدایﷻلره چی ژوند او مرگ ئی پیداکړی دی تر څو خپل بندگان وازموئی چی څوك سپیڅلی او نیك کړنی تر سره کوی، سپیڅلی ذات دی هرڅه چی کوی دپوښتنی څوك ئی نسته داسی ذات دی چی نوروته ورکړه ورکوی بیا پوښتنه ځنی کوی. صلواة او سلام دی پر سپیڅلی پیغمبر (محمد بن عبدالله) دی همدا ډول دی دده پر یارانو وی چی په وفاسره ئی پرده باندی ایمان راوړی دی او دژوندی تر پایه پوری ئی دده ملگرتیا ساتلی ده کوم نور چی پر ده نازل سوی دی دوی دخپلی لاری ډیوه گرځولی دی رینښتنی او پرهیزگاران دی.

امابعد:.. هر څومره چی بشریت دجنگ په ډگر کښی دجگړیزو سلاوو ودانونکو او راکښونکو سلاوو په زیږدکی مخ په وده دی په همدغه پیمانه فکری جگړه هم دیوی ورانونکی، بنسټ غورځونکی او په اسلامی ټولنه پوری نښتی جگړی په څیر وی. ښائی اغیزی دی تر نظامی جگړی بدتره او کښونکی وی. پر اسلامی نړی باندی دلویدیځ دټولوناوړولټو ماتی ولویدیځی صلیبانو ته ددی لاره پرانستل چی پر اسلام او مسلمانانو باندی فکری جگړه پیل کړی. ددی ځلی دنوو وسائلو او نوو تگ لارو سره مل وډگر ته راوتلی دی تر دلږی ستړیا او لږ تاوان په وړلو سره سترگی بریاوی ترگوتو

کړی. نو له همدی ځای څخه اسلامی پوهنځیانی او استیتونه پردې سلا سوه چی دلویدیځ دبوګنونکی او ناوړه دښمنی څخه دمحصلینو او متعلمینو په پوهاوی په موخه یو بل مضمون دفکری جګړی په نامه په تعلیمی تیراژ کی راننه باسی. ناتوانه بنده چی دنوموړی مضمون دابوحنیفه پوهنځی کی ددرو سمسترو په اوږدو کی درس کړی نو ددی احساس می وکړی چی دمحصلینو لپاره دفکری جګړی تعلیمی کتاب دزیاتو او سختو عباراتو له امله ډیر سخت دی په عین حال کی دپخوا په څیر دنوموړی کتاب څخه دمحصلینو شکایت راتلل نوی ویناوی او څیړنی پر دی راچاپیره وی چی باید ددی کتاب پر ځای یوبل کتاب درس دی چی دلغت او فرهنګ له مخی دشاګردانو سره برابرو ی او په بیل فصلونو کی موضوعات په منظم ډول او ډل سوی وی مګر ددی پوښتنی عملی جواب زما پر اوږو راولویدی تر څو داسی کتاب ولیکم چی دداسی عناصر لرونکی چی مخکی کتابه نه درلودل دمثال په ډول لاندی عناصر: د وس تر بریده داصلی او بنسټیزه موضوعاتو روښانتیا، دتعلیمی نصاب سره برابر ددتعلیمی موضوعاتو برابرول، دمحصلینو دتوان سره برابر اسانه او سلیس متن جوړول منځ لاری دافراط په اوږدوالی کی او دتفریط په لنډ والی کی چی دلمړی پایله فکری دروند تیا ده او ددویم پایله نیمګړتیا ده دالله ﷻ په مرسته می دموضوعاتو او مطالبو تر نظرتیرول پیل کړه وروسته می دپورتنی ځانګړتیاوو په نظر کی نیولو سره دکتاب نظم او ترتیب پیل کړی همدا ډول می کتاب پر درسی واحدونو باندی وویشی تر څو دشاګردانو

په پوهه کې اسانتیا رامنځ ته سي. تر بشپړتیا وروسته مې غوښتل چې دامام ابوحنیفه پوهنځی دمحترم اداري مقام څخه مننه وکړه چې زما پرکسه نیك نظر او اعتماد وکړی همدا ډول دپوهنځی دتربیوی بخش وسؤل دروند استاذ ابوفیصل زیاته همکاری چې دکتاب په اصلاح کې ئې زیات حمتونه وګالل او دکتاب په نظم او ترتیب کې ئې ګټوری مشوری وړاندی کړی او په چاپ کې ئې هم ونډه واخیستل هیڅ وخت به ئې دیاده ونه باسم اللهﷻ دی دوی ټولو ته جزیل اجر ورکړی او اللهﷻ بی حسابه لورینی پری نازلی کړی. داللهﷻ څخه سوال کوم چې زما دغه دناتوانی عمل دخپلی رضا په خواکښی کښیږدی، او دصدقه جاریی په څیر یی وګرځوی او داسی عمل ئی وګرځوی چې خلګ ګټه تری واخلی، ثواب ئی زما دمړینی وروسته دوامداره سی، او دقبر دیوی ریدونکی، او وحشت ناکه حالت کی دی ئی مینه لرونکی عمل وګرځوی، اللهﷻ دی ددی عمل په واسطه زما مور او پلار او استاذانو ته بخښنه ورکړی بیشکه څښتن تعالیٰﷻ دیواځنی دهیلو او امیدو سرچینه ده. اې خدایه! ماپرتا توکل کړی دی او تاته می رجوع ده. وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد واله واصحابه اجمعین.

یحیٰی محمد الیاس. سه شنبه ۱۴۱۴/۶/۱۷هـ ق.

# فکری جګړه

ډاکټر جمیل مصري دفکري جګړې په اړه وائي: اروپائیانو چې کله داسلامي دنظامي جګړې په وړاندې ماته وخوړه او دسلاح الدین ایوبي او نورو واکنانو ضربې وخوړې نو نوی دافکر ورته پیدا سو چې دمسلمانانو پر دین او فرهنګ باندې یرغل ګټور او ښه پایله لرونکی دی نو له همدې امله ئې خپله دښمني غشې ئې داسلامي مفکورو او فرهنګ پر لوري وتوغاوې. په اسلامي هیوادوکې ئې په دخپلو اهدافو دترلاسه کولو په موخه او پر اسلامي نړۍ باندې دبرلاسي په موخه ئې اسلامي عنعنات او فرهنګ تر برید لاندې راوستل او اسلامي اثار ئې به اروپائي ژبو وژباړل همدغې رویې ته فکري جګړه ویل کیږي. په په لنډ عبارت فکري جګړه دلویدیځ دهغه غیر نظامي رویو څخه عبارت ده چې داسلامي ارزښتونه دمنځه وړلو، مسلمانانو داسلامي تمسك څخه دلیري کولو داسلامي ایډولوژۍ او اسلامي فکر څخه دمسلمة امت دخلاصولو لپاره کارول کیږي. استاذ محمد قطب دفکري جګړې په اړه وائي: دفکري جګړې منظور دغیر نظامي وسائلو آلاتو څخه دي چې ددښمنانو دصلیبي جګړو وروسته مسلمانانو په منځ کې ئې غوره رویې او دمسلمانانو دمذهب څخه لیري کول په راوستل، کوم څه چې په عقیده، افکارو، تقالیدو او نورو اړخونو پوري اړه لري په کارو اچول. ددغې فکري جګړې پر راوستلو پر بنسټ صلیبانو دمسلمانانو په وړاندې یو نوی تګ لاره خپله کړې ده وروسته تر دې چې دوی په ټولو مسلمانه جګړه کې ماته وخوړه. استاذ محمد قطب وائي: لمړی کس چې دبلونکې په عنوان ئې خلګ ددې

اغیز منتیا تـه متوجه کړل (لـویس) دفرانسـی نهـم پاچـا چی یـو څـه وخـت دمسلمانانو سره دمصر دالمنصوره زندان کی بندی وو وروسته دپیسو پـه بـدل کـی خوشـی سـو نومـوړی دزنـدان پـه اوږدو کـی دنظـامی وسـائلو دمخامختیا پرتـه یو نوی لاره پیداکړه او پدی باور سو چی پر مسلمانانو باندی برلاسی دنظامی لاری شونی نه دی، بایـد دمسـلمانانو سـره عقیـده افکارو تقالید کښی وجنګیږو. کله چی دوی دزندان څخه خوشی سو دپاریس دسـتنیدو وروسـته ئـی دملـت او خپلـو خلګـو تـه وویـل: کـه غـواړی چـی مسلمانانو ته ماته ورکړی نو دمسلمانانو سره یواځی په اوسپنیزه اسلحو مـه جنګیـږی ځکـه دمسـلمانانو پـه وړاندی مـو پـه جګړو کـی ماتـه خوړلی ده نـو دمسلمانانو په مهمه ساتنځای کی وجنګیـږی چی دعقیدی څخه عبارت ده. (تاسو کولای سی په عقیدوی او مذهبی دودو کی پر دوی برلاسی سی.)

# دفکری جګړی تاریخ

دڅښتن تعالیٰﷻ رضا او مثیت دی چی حق تل دباطل په وړاندی په کشمکش او دوامداره چلو کی واقع وی تر څو اللهﷻ لویه مځکه او هغه څه چی پکښی دی وحق ته به میراث ورکوی. او دحق ریښتنی مرستیالان ئی دحق په دفاع او

ساتنه کی بی پاملرنی نه دی پری ایښی لکه چی دباطل ملاتړونکی او غوښتونکی دحق په مقابل کی دچلو او مکر څخه یو آن هم نه کښینی (الله جل جلاله) فرمائی: **ولایزالون یقاتلونکم حتّی یردوکم عن دینکم ان استطاعوا** ط.

**ژباړه:** تل به دوی ستاسو سره جنګیږی تر داسی بریده چی تاسو دخپله دینه واړوی که وتوانیږی. لکه څرنګه چی دمعانیو علماء وائی: دالله ﷻ په قول کی د (لا یزالون) او د (یقاتلونکم) لفظ مضارع دی او مضارع تجدد استمراری افاده کوی. نو په دی معنٰی ددښمنانو چل او ټګی داسلام په وړاندی دډیره پخوا څخه راپیل ده. او وړاندی والی ئی ددې دین دوړاندی والی په اندازه دی په کلی ډول ترڅو چی مسلمانان پر خپله عقیده ټینګ ولاړ وی ښائی دوی خپلو کړونو ته ادامه مورکړی خو دځان او وخت دبدلون په صورت کی دخپلی هم ږغی په موخه ښائی پر خپلی تګ لاری تجدید نظر وکړی. نو ددی خبری پر بنسټ باندی دفکری جګړی تاریخ داسلام دسپیڅلی دین دپیل څخه په یوه وخت داپیل دی. یعنی حق دپیل څخه مرستیالان او پیروان درلودل او په مقابل کی ئی ورسره جوخت باطل هم مرسته کونکی او پیروان درلودل. ریښتیادی، قرآن کریم ومورِ ته دآدم علیه السلام داستان چی شیطان ددوستی په پوښ کی ځان ناصح ورته ښکاره کړی او دچل لپاره ئی قسم ورته یادکړی په دی ډول حکایت کوی: **وقاسمها انّی لکما لمن الناصحین** ط **ژباړه:** ددوی دواړو (یعنی آدم علیه السلام او حوا) ته ئی قسم واخیست چی بی شکه زه تاسو ته نصیحت کونکی یم. دغه موضوع په دغه جګړه یو ډول چټله ده چی په مرموزانه او تیر

ایستونکی ډول طرحه سوی ده چی وروسته تر یوه وختـه دځرګندتیا سره ئی پیغام یو ځای سو. دمحمدﷺ دامت په تاریخ کی ډیر داستانونه او پیښی سته چی دپیښیدو سره یوځای سوی دی مګر ددغه حوادثو او جګړو په لړ کی هیڅ نـه دی توانیـدلی چـی ددوی پـه فکرولـړ بـدلون رامنځتـه کـړی. دکعـب بـن مالک رضی الله عنه داستان چی تبوك په غزا کی ددرو مخورو کسانو څخه وو، توبه ئی تر یو وختـه ځنډیـدلی وه تـر داسـی بریـده چـی مځکـی خپـل پراخـوالی پـری راتنګ کړی وو رسول اللهﷺ پریکوڼ ورسره کړی وو، دغسان پاچا لیك ورتـه رااسـتولی وو چـی ده تـه بـه بلنـه پکښـی ورکـړل سـوی چـی ددنیـاوی مقـام او منزلت په خاطر وپاچته مخه کړی. زمـوږ دموضـوع ښـه ثبـوت دی. پـه هـر حـال داداستان به خپله کعب بن مالك څخه واورو چی خپل ئی راوی هم دی تـر څـو وویـنو چـی ددی مخـورو صـحابی دمـادی شیانو او منصـب پـه وړانـدی څهـه عکس العمل وو؟ ((..... یوه ورځ چی دمدینی په بـازار کـی روان وم چـی نـاببره دنبطی قوم یو سړی چی دخوراکی توکو درانیولـو پـه موخه دمدینی بـازار تـه راغلی وو دخلګو څخه ئی وپوښتل: کعب بن مالك څوك دی؟ خلګو زما لوری تـه اشـاره وکـړه او زه ئـی ورتـه پـه ښـه کـړم تـر داسـی بریـده چـی دغـه سـړی زمالوری ته راغلی او دغسان پاچا لیك ئی راښـکاره کـړی پـه لیـك کـی لیکـی وه: امابعد: خبر سوی یم چی ستادوست او ملګری دخدای رسولﷺ ستا سره جفا کړی ده او حال دا چی الله جل جلاله ته رسوا او پایمال کړی نه ئی راسه زما سره یوځای سه. ماچی دالیك ولوستی پوه سوم چی دا هم یوه ازموینه نو له همدی

امله می په بل وورکی وسوائی. یوه بله کسئله چی درسول اللهﷺ په سپیڅلی عصر او داصحابو کرامو په عصر کی دفکری جګړی یوه نمونه ده هغه داستان دی چی سبب دنزول ئی دالله جل جلاله فرمان په سورة آل عمران کی دی.

**یایهالذین امنو ان تطیعوا فریقاً من الذین او تواکلتاب یردوکم بعدایمانکم کافرین** ط.

**ژباړه:** اې هغه کسانو چی ایمان مو راوړی دی که ستاسو څخه یو دوله دهغه کسانو پیروی وکړی چی کتاب ورکړل سوی دی تاسو به کفر ته واوړی وروسته تردی چی تاسو ایمان راوړی دی څه هم ددغه آیات دنزول لپاره یو شمیر اسباب ښودل سوی دی خو دټولو اسبابو پر دی نقطه اتفاق دی چی دیهودو کرغیړن راسی دفتنو دتخم کرلو په موخه، دجنګونو او اختلافاتو واورته لمن وهل داخل وه او یوه بریده په خپل شوم پلان کی بریالی هم وه، وروسته سپیڅلی پیغمبر په جریان کی واقع سو او الله جل جلاله بی نیازه نعمتونه ئی بیان کړه او په چابکی سره ئی دخیر وریځ چی زړونه ئی په تشویش کی غورځولی وه لیری کړه او زړونه ئی دصفائی لوری ته راوګرځول. په دی موضوع کی ډیر داستانونه سته چی دغه وړکوټی کتاب دټولو دځایولو جوګه نه دی مګر ټول داستانونه او حکایت ودی نقطی ته اشاره کوی چی مسلمانان دفجور دعوت په یرغل کی دتاریخ په اوږدو کی دداسی جګړه مخ سوی دی په هر غوږ چی دغه شومو تبلیغاتو ته اینښودل سوی وی نسی کولای چی پاکه موخه تر لاسه کړی. یقینی خبره ده چی داسلام سپیڅلتیا، ټینګ ایمان، ثاپت یقین او دالله جل جلاله ولوری ته ریښتنی توجه دده ناوړه کرغیړونو پلانونه

ددوی مخه نیسی او ده هغه خپرونو پر مخ دبطلان لیکه کشوی چی خبری سوی دی. خو په تاسف سره باید ووایم چی په ورستیو وختو کی دخلگو ایمان کمزوری سوی دی او ددنیا ولورته ئی مخه کړی ده دعزت او قدرت اسباب ئی دهیری په گټگو کی اچولی دی معیارونه او وزنونه ددی په آند یوی او بلی خواته گرځیدلی دی او ددوی په آند نیولو سرچینی زیاتی سوی دی نو په داسی حالت کی کیدلای سی چی نوموړی جگړی دښو پایلو سره خپل ماموریت ترسره کړی. او خپل موخه په مدبرانه ډول سره لاس ته راوړی لنډ خبره داده چی دفکری جگړی ددی دعوت دعمر په برابر قدامت لری. مگر داخیرو پیړو او نهمی پیړی پرته نه دی توانیدلی چی هیڅ ډول لاس ته راوړنی دی ئی تر لاسه کړی او نه ئی په یوه دوره کی د دورو خپل شوم ارمانونه پوره سوی دی. لکه چی وویل سوه ددوی دجگړو په بریالیتوب یوائی په اخیرو پیړیو کښی دمسلمانانو دکمزوری ایمان، داسلامی مفاهیمو گډوالی او دهیتوالی بیلی سرچینی باالاخره واسلام ته دلویی ناپوهی نسبت او ددوست او دښمن ترمنځ په نه توپیر کښی نغښتی دی. او دهمدی لاری تر یوی اندازی پوری بریالی سوی دی.

# دفکری جگړی سلاوی

ددې جگړی سلاوی ډلنیو وژونکی وسلی، بمونه راکټونه ، موشکان، مخ په وده طیاری او ماډرن توپونه نه دی بلکی ددی جگړی وسلی تر پورتنی

سلاوو بدتری دی او پنسټ غورځونکی دی فکر کوم چی دغه سلاوی د اسلام ضد او غیر انسانی فکرونه خپرول دی، ددوی دجګړی سلا دشك او تردرپیداکول دی په دینی تعلیماتو کی، په اسلامی ټولنه کی دښمن او بی باوری شیندل دی. یقینی خبری ده چی دداسی سلاوی دی چی ډیر خلګ نه دی ورته متوجه.

# دفکری جګړی ځانګړتیاوی

ددغه فکری جګړی دځانګرتیاوو ځخه شمو لیت اوږدوالی دی. داسی چپکونکی او نیونکی جګړه ده چی په یوه یاسو صحنو پوری خاص نه ده بلکی دانسانی ژوند ټولی صحنی تر برید لاندی راولی. او داسی نور ناخوښی انجنری پر ځای پریږدی چی په مسلحانه جګړه کی تر سترګو کیږی نو له همدی امله بی څه نه دی چی اللهﷻ داسی کسان په سختی سره محکوم کړی دی او بدو نومونو سره ئی یاد کړی دی لکه: شیاطین، ناپوهان، لوی مجرمان، کفر بلونکی او دزړه ناروغان همدا ډول دغه جګړه او ددغه جګړی بدی پایلی فتنی، کبر، غرور، خودبینی او بده پیژندنه زیږوی. او ناوړه پیغامونه بی دتوری پر اغیوزو او وژنی بد دی لکه چی اللهﷻ فرمائی: الفتنة اشد من القتل. ژباړه: فتنه اچول تر وژنی زیاته سخته ( بده ده)ده.

# دفکری جګړی شعار

دفکری جګړی مشران او متولیان دخلګو دتیر ایستولو او دفکرونو دغولولو لپاره داسی شعارونه په کار اچوی: وده، تمدن اصلاح او غوښتنه، دپوهنیز ښکیلاك په وړاندی مقاومت، دبیان او نظر ازادی، دتیرو څرګند تیاوو او پدیدو په وړاندی پاڅون او داسی نور. مګر دغه ټوله شعارونه دحقیقت څخه خالی دی ددوی دغه شعارونه یواځی چی وده، ازادی او صلحه نه راوړی بلکی بی عدالتی، زورزیاتی او استشمار منځ ته راوړی.

# دفکری جګړی خطراو دمبلغ لپاره ئی دیرغل اهمیت

فکری جګړه په څو مرتبو تر نظامی جګړی خطرناکه ده ځکه مظامی جګړه ټولو ته یعنی پوه او ناپوه، لوی او کوچنی ته روښانه ده او ټوله په یوه سلا ددفاع په موخه دښار پاکی او دخلګو خلاصون دجګړی دتاوانو څخه کړنی ترسره کوی داکار ډیر اسانه دی. او فکری جګړه په پټ طرحه کیږی دلږو خلګو پرته ئی څوك نه وینی تر هغه وخته چی ژوری اغیزی او منفی اثرات ئی نوی ښکاره سوی څوك نه ورته متوجه کیږی. بلی: پر ځای خبره ده چی ووایم چی فکری جګړه زیاته خطرناکه تر نظامی جګړی او ښکیلاك ده. څه دی چی

داجګړه دمځکی مخ نه تهدیدوی بلکی عقل تهدیدوی. دیوه لښکر سره نه مخامخ کیږی بلکی دیوه ملت سره مخ کیږی جغرافیایی مساحت تر خپل ګورت لاندی نه راولی بلکی فرهنګ تر خپل ګورت لاندی راولی. دیوی ځانګړی پایګاه او موقیعت سره نه جنګیږی بلکی شخصیت تر ښپی لاندی راولی. یو شاه (کوهی) ته زهر نه اچوی بلکی ښارونه او عقلونه مسموم ګرځوی. الات او حروف نه خرابوی بلکی عقیده او ثقافت له منځه وړی نو له همدی امله دغه جګړه ډیره مشکله او ژوره جګړه ده. ددغه جګړی په وړاندی مقاومت او دفعه ئی تر رغنده بی له دریدو لټون، ما هرانو خپرونو خپرول او ټینګ تنضیم غوا ړی .کله فکری جګړه دومره خطرونه لری نو هر اړ خیزه یرغل دمبلغ لپاره داهمیته ډك رول لری ځکه مبلغ دامت مسلمة ستوری دی او دامت لپاره یو محکوم حیثیت لری. چی امت ئی دهمایت سره پناه تر لاسه کولای سی نو دغه مبلغ ته اړینه ده چی ددغه جګړی په اړه کافی معلومات ترلاسه کړی. او ددوی دټولو پلانونو ، خپرونو او چلونو څخه چی ددی امت لپاره چمل کیږی ځان خبر کړی پدی ترتیب کولای سی چی په ښه توګه خلګوته ددین ښه پوهه ورکړی او ددوی دافسانوی شرو څخه ئی وژغوری او دشیطانانو ددامونو او کمینو څخه ئی وساتی چی ددعوت په لاره کښی اینبودل سوی دی. اللهﷻ فرمائی: قل هٰذه سبیلی ادعواالی الله علی بصیرة اناومن اتبعنی وسبحان الله وما انا من المشرکین ط. ژباړه: (اي رسولهﷺ!) ووایه دغه زما او دهغو کسانو لاره ده چی زما اتباع کوی چی داللهﷻ ولوری

ته په بصیرت او بینائی سره دعوت کوم الله پاکﷻ دی او زه دشرك نیونکو څخه نه یم. (سورة کهف _ ۱۰۸)

# دفکری جګړی مرحلی

فکری جګړه دخپلو ارمانونو دپوره کولو او شتون پیداکولو لپاره تر ثلورومرحلو تیریږی او هره مرحله دورستی مرحلی لپاره تمهید او مقدمه وی. کیدلای سی چی دغه مرحلی په لاندینو ټکو کی خلاصه سی: الف: صلیبی جګړی. ب: ښکیلاك. ج: پر اسلام باندی دچینی پاڅونونولومه. د: دمسیحیت دودول او دمسیحی تبلیغ لپاره دمبلغینو استخداموول داسلامی دین په وړاندی. په راتلونکو پاڼوکی به ددی مرحلو بیان په تفصیل سره وکړو.

# لمړی: صلیبی جګړی

## (دصلیبی جګړو تعریف)

صلیبی جګړی وهغه جګړو ته ویل کیږی چی دنصاراوو او دمذهب مشرانو پرغلګرو داسلام دځلا په وړاندی دصلیب په نامه بیرغونه ورپول داجګړه ئی

له دی امله دصلیب په نامه ونومول چی غربی یرغل دارسم وښئی چی داخپله یوه دینی جګړه ده او پر خپلو سینو به ئی دصلیب نښانی ځړولی وی.

# دصلیبی جګړو تاریخ

لومړی کس چی په دی جګړه کی دجګړو لپاره لاره پرانستل پاپ (سلفستردوم) وو چی په (۱۰۰۲_م) کال کی کار پیل کړی. خوله نیکه مرغه دده دعوت په خپل قوم کی دقبولیت لاره نه کړه خپله نوموړی پاپ شتون په لاره کی موافق نه سو. وروسته په (۱۰۷۵_م) کال پاپ (خوریفوس) خپلی پښی دفتنو پر میدان کیښوولی او بیا ئی دافکر راژوندی کړی او داشومه بلنه ئی په نوی بڼه ژوندی کړی او دخپلو خلګو دتشویقولو په موخه چی دمسلمانانو سره وجنګیږی یو کړی هم ارام نه کښیناستی. مګر دده دعوت هم دشلو کالو په پوره کیدو سره وځنډیدی په (۱۰۹۷_م) کال کی ئی صلیبی یرغل ګر دمسلمانانو وښاروته راننوتل، وژنه، چورچپاول، دربدری اود ودانیوورانول ئی پیل کړه.

# دغه جنګونه څنګه پای ته ورسیدل؟

دغه جګړو تقریباً دوه سوه کاله د (۴۸۹_۶۹۰) پوری دوام پیداکړی. صلیبان په غیر انسانی شکنجو، دمسلمانانو په ډلنیزو وژنو او دمسلمانانو په

وحشیانه وژنو ددې څخه ناتوانه سوه چی د اسلام سپیڅلی دین دی د مخه څخه پوزی. مسلمانان د خپلو عقیدو او مقدساتو په دفاع کی سر سخته برینبدل په دی سپیڅلی لارکی ئی بیخی د هیڅ ډول قربانی څخه مخ نه اړوی، مسلمانانو ډیر ښکلی ځوانان د اسلام د دفاع لپاره وړاندی کړل، هرکله چی به یو اسلامی واکمن د پښو وغورځیدی او د شهادت لوړ مقام ته به ورسیدی نو سمدستی به بل واکمن راپورته سو او د اسلام بیرغ به ئی ورپاوه او ددې سپیڅلی لاری مشری به ئی په لاس کی واخیستل تر داسی بریده چی څښتن ﷻ واسلامی حزب ته کامله او پوره بریا ورنصیب کړه او صلیبی یرغل او شیطانی حزب ته ئی زلت او ماته ورپه برخه کړه. د صلبیانو پر ضد جهاد په رهبری کی دوتلو واکمنانو څخه (شهید نورالدین محمود زنګی ترکی) او لایق، وتلی او دلاور قهرمان (صلاح الدین ایوبی) وه او د اسی نور واکمنان هم وه چی د اسلامی امت لارښوونه ئی د بریاوو ولوری ته کوله او د الٰهی لطف په سیوری کی ئی خپل د ثبات نښان ښودی ددی ناوړه یرغل په وړاندی ئی مقاومت وکړی تر څو صلیبی لښکر د مسلمانانو د لښکر د وړاندی ماته وخوړه هغه مسلمانان چی پر څښتن تعالیٰ ﷻ ئی کامل توکل وو او د څښتن تعالیٰ ﷻ په دین ئی پوره منګولی لګولی وی. صلیبی لښکر په ټیټو سترګو د ماتی سره ملا خپل وطن ته بیرته ستون سو د مسلمانانو د بریا د رمز څخه ئی ژور عبرت تر لاسه کړی پوه سوه چی مسلمانان هرڅومره کمزوری کیږی مګر د الله د فضل په خیرو کی په عقیده باندی د منګولو لګولو ساتنی، یووالی، په یوه ټوټه

کیدو ، د اسلام په پابندی په خپل الٰهی کتاب دمنگولو لگولو ، دنبوی بنسټ په اتباع کولو ، پر الله ﷻ باندی په توکل کولو او په ټولو هغه اسبابو او سایلو سره چی شریعت ئی لارښوونه کړی ده کامیابه کیږی. الله ﷻ فرمائی: **وردالذین بغیظهم لم ینالو خیراً وکفی الله المؤمنین القتال وکان الله قویاً عزیزاً وانزل الذین ظاهرو هم من اهل الکتاب من صیامهم وقذف فی قلوبهم الرعب فریقاً تقتلون وتاء سرون فریقاً ط.** (**سورة احزاب ایه** ۲۵_۲۶) **ژباړه:** الله ﷻ **هغه** کسانو له قهره او درده په ډك زړه سستنه وی چی کافران دی او هیڅ کله به خیر ته ونه رسیږی او الله ﷻ ومومنانو ته دجنگ په ډگر کی بریا او کامیابی ورنصیب کوی الله ﷻ زیات قدرت لرونکی او غالب دی الله ﷻ یوه دله دکافرانو څخه (چی مشرکان) ئی مرسته کوی دخپلو محکمو کلاوو څخه راغورځوی او په زړه کی ئی ویره وراچوی یوه ډله به وژل کیږی او یوه ډله به اسیران کیږی.

# دصلیبانو جنایتکاره کړنی

کله چی صلیبانو خپل وحشیانه یرغل پر (۱۵) دجولائی د (۱۰۹۹_م) چی د (۴۹۳_هـ) سره سمون پر بیت المقدس باندی ترسره کړی تر اویازرو زیات بیگانه مسلمانان ئی ذبحه کړه باالاخرة ددوی دناوړه کړونو په لړ کی ( ۱۰۰۰۰۰) بیگانه مسلمانان ووژل سوه. دمسیحی راهبانو څخه ( روبرت) په قدس کی دصلیبی قتل گاهو په اړه لیکی: خلگ دبازار په کڅو او جادو کی

دانتوتل او دخپلو غرایزو داشباع په موخه دمسلمانانو پرکورو یرغل وکړی، کوچنیان، ځوانان، سپین ږیری او ښځی ئی ذبحه(حلال) کړه او ټوټه ټوټه ئی کړه ډیر خلګ ئی ددار په تناو وځړول او اعدام ئی کړل.

# دصلیبی جګړو موخی

صلیبی روحانیانو صلیبی جګړو ته سترګی په لاره وه او دټول موخو دشتون لپاره ئی هڅی کولی چی په لاندی لیکو کی ئی خلاصه کوم: (۱)دمسیحیت دین خپراوی داسلام پرځای ئی درول او دمسلمانانو هڅول دعیسویت دولوری ته. (۲)دمسلمانانو څخه خپل غچ اخیستل ددوی په خپلو ښاروکی ورسره جنګیدلی وه په پایله کی پر دوی باندی دبرلاسی په صورت کی ئی دمدیترانه بحر ئی په اسلامی بحیره سره بدل کړی او دفرانسی ترجنوبی برخو ئی پرمختګ کړی وو. (۳)دمسلمانانو څخه غچ اخیستل چی دوی ئی دخپلو ښارو څخه ایستلی وه. (۴)داندلس بیا ردول چی مسلمانانو په (۹۲_هـ) کال کی داسلام تر رسیدو وروسته په یو ځواکمن اسلامی هیواد سره بدل کړی وو. (۵)پر اسلامی ښارونو باندی برلاسی چی دتبعی منبعو او مځکنی ذخیرو څخه ئی ګټه واخلی. (۶)دیهودو دزړو هیولو شتون چی دچپه کیدو غوښتونکی وو. داسلام او عیسویت ددواړو دینونو یو دئله

کښنته کیدل هدف وو چې پر ټولو وسائلو باندې برلاسې چې په ژوند پورې اړه لري او درستې نړۍ قیادت په خپله غاړه واخلي.

# دوهم استعمار

## (colonization)

څرنګه چې مخکنۍ وویل سوه صلیبي یرغلګر دیقیني او پوره ماتې وروسته خپل وطن ته ستانه سوه دالله ﷻ په مرسته او دامت اسلامي دقرباني دغیزې له امله نه وتوانیده چې خپل شوم اهداف او شومې هیلې تر سره کړي مګر ددې ماتې وروسته اروپا هیڅکله ارامه نه کښېنستله او خپل سلائي پر مځکه نه کښېښول بلکې دیرغل دنوو فکرو اونوتګ لارو سره مل دخپرونو په خپراوي او پر مسلمانانو باندې داجراکاري پیل کړي که څه هم داروپایانو موخې کټ مټ په هغه ډول وې چې دصلیبي جګړو په بیان کې مې بیان کړې مګر ددې ځلې ئې په یرغل کې اقتصادي امتیازات او اهداف او دمسلمانانو دمځکو دطبعي منابعو راایستل هم شامل وه. اروپایانو هغه وخت خپل ښائست وټاکی چې ئې دوی په کامل او پوره مهارت سره درك کړې وه چې اسلامي خلافت دځینو نیمګړتیاو سره سره ویووالي او یوې ټوټې کیدو لپاره مثال ښودل کیږي. مسلمانان دپروانو په څیر تراسلامي بیرغ لاندې راټرخې او تر

دغه بیرغ لاندې دارامتیا احساس کوي. دهمدې خبرې پر بنسټ باندې په خپل پوره زور او قوت سره ئې دخلافت دړنګیدو هڅې پیل کړې او خپل پوره زور ئې دخلافت پر ړنګیدو باندې متمرکز کړې. ددوی خبیث مزدور کمال اتا تورك ئې ددې خبیثې تګ لارې لپاره مجهز کړې تر څو دغه مهمه نقشه پر مخ بوزي. نوموړې دغه نقشه په ډیر ښه ډول پر مخ بوتلل او دخپل بادارانو درس ئې ډیردقت سره ازاد کړې وو چې په پایله کې خلافت سقوط وکړې یووالی ضربه وخوړه اسلامي امت یو دبل سره وپاشل سو، مسلمانان پر کمزورو ډلو او هیوادونو وویشل سو. اسلامي هیوادونو چې اصل کې ئې دمقاومت او دفاع توان دلاسه ورکړې وو او سلاوې ئې دلاسه وتلي وې په همدغه وخت کې پر مسلمانانو باندې خواهشات برلاسي سوي وه، فتنې او ګډوډې ښکاره سوي وې، ناپوهي خپلې منګولې ښخې کړې وې. په دغه وخت کې غرب ولیده چې پر اسلامي هیوادو ښکیلاك او دطبعي منابعو دایستلو لپاره زمینه مساعده ده. غرب چې داسلامي هیوادو دبندکښلو لپاره دپیړیو پیړیو څخه پر ګوتو حساب کاوه نو ښه ئې وګڼل چې دغه هدف ترلاسه کول دنوولسمې او شلمې پیړې پرته نسې کیدلای نو له همدې امله ئې دوخت څخه ګټه واخیستل ټولو غربي هیوادو په هم ږغي سره داسلامي هیوادو پرلوري حرکت راوکړې البته په دغه ښکیلاك فرانسې او انګلستان زیاته برخه او زیات لاس درلودې. دیادونې وړ ده چې دتاریخ په دغه مرحله کې ددوو هیوادو پرته چې یوه ئې جزیرة عرب (سعودي عرب) او دوهم ئې سربلند

هیواد افغانستان دی نور ټول هیوادونه په ښکیلاك کی راغله. په همدی تر تیب سره ټول اسلامی هیوادو دغربیانو تر مستعمری لاندی راغلل یا ددوی په خپل منځ کی دکشمکش سیمی دگرځیدی. په لاندی جدول کی دهغه اسلامی هیوادونو نومونه یادوم چی دغرب داستعمار لاندی راغلی دی.

## فرانسه: (لاندینی هیوادونه ئی تر ښکیلاك لاندی راوستلی وه)

(۱)دالجزائر ښکیلاك په کال: (۱۸۳۰_م.../۱۲۸۶_هـ). (۲)دتونس ښکیلاك په کال: (۱۸۸۱_م _/۱۲۹۹_هـ). (۳)دمراکش (المغرب) ښکیلاك:(۱۹۱۲_م_/۱۳۳_هـ). (۴)دشام ()سوریې ښکیلاك: (۱۹۲۱_م _۱۳۳۸_هـ). (۵)دسنگال ښکیلاك په کال: (۱۸۸۲_م _/۱۳۰۰_هـ).

## انگلستان: (لاندی هیوادونه ئی تر ښکیلاك لاندی راوستلی وه)

1. هندئی په کال: (۱۸۵۷_م _۱۲۷۴_هـ) کی تر ښکیلاك لاندی راوستلی وه.
2. مصر ئی په کال: (۱۸۸۲_م/۱۳۰۰_هـ) تر ښکیلاك لاندی راوستی.
3. عراق ئی په کال: (۱۹۱۴_م/۱۳۳۲_هـ) کی تر ښکیلاك لاندی راوستی.

4. اردون او فلسطين ئى په كال: (١٩١٨_م _١٣٣٧_هـ) كى تر ښكيلاك لاندى راوستل.
5. سوډان ئى كال: (١٨٩٨_م _١٣١٦_هـ) كى تر ښكيلاك لاندى راوستى.
6. نايجريا ئى په كال: (١٨٥١_م _ ١٢٨٦_هـ) كى تر ښكيلاك لاندى راوستى.
7. زنگبار ئى په كال: (١٨٧٠_م _١٢٨٨_هـ) كى تر ښكيلاك لاندى راوستى.

# ايټاليا لاندى هيوادونه تر خپل لاس لاندى راوستل

1. صومال او ارتيريا ئى په كال: (١٨٨٧_م/١٣٠٥_هـ) كى تر ښكيلاك لاندى راوستل.
2. ليبيا ئى په كال: (١٩١١_م/١٣٢٩_هـ) كى تر ښكيلاك لاندى راوستل.

**بلى:** دغه ظالم استعمار يوائى دمسلمانانو پر هيوادونو باندى تسلط او دطبعى منابعو پر راكښولو باندى بسنه ونه كړه بلكى مسلمانانو په خپلو منځو جنگولو، ددوى له منځه ښخه ديوالى په وړولو او ددوى دفكرونو او عقايدو په خرابولو كى ئى زياتى هڅى كولى. تر داسى بريده چى هر مقاومت ئى چپه كړى. ددغه ملتونو په تذلذل ئى خپله بقاء تضمين كړه. او دخپلو مصالحو او اهدافو لپاره ئى دبندگى توك ددغه بيچاره گانو په غاړه كى

ورواچوی. تر ټولو غوره شی چی دلاری په پریکولو کی ئی لټه کوله او مسلمانان ئی دکفارو او استعمار پر ضد جهاد ته هڅول اسلامی روحیه وه هغه اسلامی روحیه وه چی د مسلمانانو په زړو کي یی دصلیبیانو څخه دنفرت کښت کرلی وواو ددی دښمن دد فاع لپاره یی مؤمنان سره یو ځای کول.

# داستعمار وسایل

بی له شکه صلیبیانو په پوره زور سره لوی لټون دمسلمانانودزړونو څخه داسلامی روحیې وړولو ولوری ته ځانګړی کړی وو او کوم وسائل چی ددی کار په کولو کښی ئی کار کولای سوای هغه ټول ئی استخدام کړی وه. دصلیبیانو تر ټولو مهمه وسیله چی دخپلو ارزګانو لپاره ئی په کار اچولی وه اسلامی فکرونه له منځه وړل او دهغوی وسخر کول وه داپدی معنٰی وو چی باید اسلام په خپل نامه او دخپلو ناضلفو اولادونو په لاس له منځه یووړل سی صلیبیانو ددوی رویې انتخاب کړی وی: (۱)یو ډله خلګ ئی داسلامی مفکورینو په نامه راوړاندی کړی وه چی ددوی په اند په اسلامی کی داصلاح او ترقی غوښتونکی وه دی ډلی کوښښ کاوه چی استعمار ته شرعی رنګ ورګړی او داستعمار اطاعت دمقاومت پرته واجب اعلان کړی دا دلیل به ئی وایه چی استعمار اوسنی واکمن دمسلمانانو دی او داولوالامه اطاعت واجب

دی. (۲)دمسلمانانو په منځ کې ئې ومذهبی اختلافاتو ته لمن وهل چې ددی اقدام تر شا ئې هدف داؤ چې مسلمانانو ترمنځ اتفاق ورك سی او په منځ کې ئې چاکونه پیدا سی او دمسلمانانو په منځ کې ئې ددوی دکمزوری کولو په موخه هر ډول اتفاق له منځه وړی په تکرار سره ذکر سوه چې دصلیبانو دغه کار ډیر خطرناك دی او اوس هم روان دی همدغه لامل دی چې یو احساساتی ډله ددین دمدافعانو په بڼه راپورته سوی دی مگر دغه ډولی په کلی ډول دفکری لحاظ څخه هضم کړی دی چې په اعمالو ئې فعل کړی دی باید دغه ډلو دهمدی خبری پر بنسټ اسلامی زده کړی دخپلو فکرونو په شکله په پوره ډول جوړ کړی او معاصر وخت او دژوند پر وده ئې ښکاره کړی چې داسلامی ثابتو اصول څخه جوړ وی او داسلام په نه بدلیدونکو اصولو باندی ولاړ وی. حاصل داچې صلیبانو دفکری جگړو کشمکش دمسلمانانو په منځ کې پیداکړی چې پر بنسټ ئې دوی ډلی په کار واچولی یوی ډلی دفکری جگړی په مټ په روڼ آند و او تعلیم یا فتـه خلگو باندی کارکاوه بلی ډلی دزور او مجاهدت په مټ کار کاوه. په دی ډول په سلهاوو زره غمونه پر اسلامی امت باندی راغلل او پر یو ناروغ جسد باندی ئې سخته ضربه راوستل چې دبده مرغه تر اوسه پوری دغه دبیلتون کرښه او سؤ تفاهم ددغه دوو ډلو تر منځ تر اوسه پوری سته. هیله مند یم چې الله ﷻ ودی ملت دتعهد او مسؤلیت پیژندنی او واقیعت درك کولو پوهه ورکړی تر څو ددښمن ټولی لومی او

## فکری جگړه

د سیسي یو په بل پسې داوبو د کربښې په څیر سی او د مسلمانانو ترمنځ فکری او جغرافیائی یوالی بیا راژوندی سی.

# دریم استشراق

(Orienjalism)

د استشراق لفظ د شرق څخه جوړ دی د اروپا یانو په آند موخه د شرق څخه ټولی هغه سیمی دی چی د مدیترانی په ختیځ کی موقیعت لری یا ټولی هغه سیمی دی چی د اروپا په براعظم (لویه وچه) کی داخلی نه دی مگر په استلاح کی: د غربیانو د هغه تحقیقاتو او یرغلونو څخه عبارت دی چی د اسلامی ختیځ د فرهنگ، دین، ژبی او عاداتو په وړاندی ئی پر مخ بیائی.

# مستشرقان

مستشرقان هغه غربی پوهان دی چی د صلبیت کرغیړنه کینه او رخه ئی د اسلامی ختیځ د علومو، فرهنگ او عاداتو په وړاندی دیرغل او تحقیق په لوری خلاصه کړی ده، وروسته بیا د اسلام د بدنامه کولو، حقایقو د پوټولو او د اسلامی نښو په خاموشولو، د اسلام په وړاندی د مسائلو په لیکلو او هرڅه چی ورسره اړه لری راپورته سوی دی او څیړنی کوی چی څنگه خپل هدف ته

ورسیږي لکه څرنګه چې دغه څېړونګي په بیلو ډلو او ښتې دي نو همدا ډول ئې موخې هم سره بیل دي په هرډول ددې ټولو عمر مې هدف پورې چې داسلام دلمنځه وړولو څخه عبارت دي او دمسلمانانو دخپلو عقیدو څخه دګرځولو او ددوي وعقیدو ته د وراوښتلو څخه عبارت دي دیادونې وړ ده چې دنصاراوو مشترکان نصرانیت دخپرولو مبلغینوته خدمت کوي او یهودي مستشرقان دخپلو موخو دشتون او دیهودیت دهیلو لپاره فعالیت کوي ملحه اوکمونیست مستشرقان غواړي چې اکار خپور کړي او دښتن تعالیٰ ﷻ هر ډول روابط پرې کړي.

# داستشراق تاریخ

په ښکاره ډول معلومه نه ده چې داستشراق پاڅون دڅه وخته راپیل سوی دی خو غالباً ویلای سم چې دتمدن او اسلامي فرهنګ دراختلو سره دقرطبه ، طلیطله او صقلیه په پوهنځیانو کې او په هغه لورې کې دمدیترانی دبحیری سره په یو وخت راپیل سوی دی روسته بیا دصلیبي جګړو ومنځ ته دراتګ په صورت کې ئې لمن غوړیدلې ده او ددغه جګړو دماتې څخه ئې وروسته خطرونه زیت سوی دي او موخه ئې معلومه سوې ده ترڅو ددغه ورانونکو جګړو په بدله کښې دمیدان ته راداخل سي او دنصرانیت ددعوت دسازمان سره اوږه په اوږه کار وکړي دیادونې وړده چې اتلسمې پیړې تر اخیرې کلو

پوی داستشراق مفهوم ښه ښکاره نهٔ مګر دامفهوم په پرانسه کې سنه (۱۷۷۹ـم) کې و پیژندل سو او دپرانسي داکاډیمي په قاموس کې درج سوځینی بیا په دې باور دي چې داستشراق ډله ((مجمع تحقیقات ویانا)) دفرمان دصدور سره یوځای چې دځو علمي کرسیو داروپا په ځینو پوهنځیانو کې پر ایجاد باندې بناء وواو دعلمو، زیات تحقیق، دینونه، تاریخ او داسې نورو باندې ئې مطالعه کوله راپیل سوي دي وروسته ئې دخپلې ودې لپاره کرار کرار مرحلې طې کړې دي او په نولسمه او شلمه پیړې کې و اوج ته رسیدلې دي په پایله کې داسلامي فرهنګ ټوله له فروع پیژندل سوي دي.

# داستشراق مرحلې

داستشراق ډلې واوج ته درسیدو په موخه درې مرحلې تیرې کړیدي:-

**لمړې مرحله:-** داکتشاف ده په دې مرحله کې مستشرقانو خپله زیاته فاملرنه دې ته کړیده چې دمسلمانانو دفاع ګانو روهیات دفکري یرغل لاندې راولې ترځو ددوی کامیابې او دمادي معنوي تاواني سرچینه کشف کړي،

**دوهمه مرحله:-** مخطلط ده په دې مرحله کې دمسلمانانو کامیابې پرعواملو اسبابو او دقوت پر سرچینو ئې دغربیانو سره پر دښمنې

دمسلمانانو پرضد باندی بحث گډ سو داهغه مرحله ده چی داستشراق پاڅون دصلیبی جګړو سره دلاری مل وو.

**دریمه مرحله:-** دښکاره دښمن مرحله ده: په دی مرحله کی دمستشرقانو دښمنی ښکاره سوه درخی او خیانت څخه ئی پرته پورته سوه او فکری جنګ په لوری ئی هڅی بیل کړی تر څو اسلامی عقیده تر برید لاندی راولی له دی لپاره چی د اسلامی مځکو پر ځای دمسلمانانو فکروته او عقلونه تر خپلی واکمنی لاندی راولی.

# داستشراق موخی

داستشراق ډلی داسی موخی لری چی غړی ئی دشتون او رسیدو لپاره هڅی کوی او اوس ئی هم هڅی روانی دی. ددوی مهمی او بنستیزی دوی موخی دی.

(۱) داسلامی فکرونو له منځه وړل چی غرب او دینونه ته ئی جدی خطر متوجه دی .

(۲) دغربیانو ګرځول داسلام څخه او دغربیانو منع کول داسلام دقبلولو څخه. ددغه دوو هدفو نو تر څنګنور هدفونه هم لری چی په لاندی ټکوکی خلاص کیدای سی:

**علمی هدف:** په دغه هدف کی مستشرقانو دشرق دعلومو مطالعه کوله ترڅو داسلام په حقیقت پوه سی چی مستشرقان مسلمانان سول.

**صلیبی هدف:** ددوی بنسټیزه انگیزه یوائی صلیبی تعصبات، دتثلیث دمفکوری خپراوی، دحریف سوی دین نصرانیت نشر کول او باالاخرة داسلام پر ځای دعیسویت دین قائمول وه دوی ددغه اهدافو درسیدو په موخه لاندی دوی رویې کرولی:

**الف:** درسول اللهﷺ په رسالت کی شك پیداکول اودا ادعا ئی کوله چی گویا مسلمانانو په لومړیو دور پیړیو کی دځانه احادیث جوړ کړیدی.

**ب:** دقرآن کریم په صحت کی شك، دوی فکر کاوه چی قرآن کریم دمحمدﷺ تاء لیف دی.

**ج:** درومی او غربی قانون په وړاندی داسلامی فقه ارزښت لمنځه وړل.

**ر:** دعربی ژبی له منځه وړل او په دی ئی تور نیول چی عربی ژبه دودی او تمدن په لاره کی بریالی نه ده.

**هـ:** داموضوع ئی مطرح کوله چی گویا اسلام دیهودیت او عیسویت څخه اخیستل سوی دی.

**و:** دمسلمانانو عیسویان گرځول او په دوی کی دتثلیث عقیده خپرول.

ز: په موضوع او ضعيفو احاديثو باندې اعتماد کول دخپلې مفکورې دتائيد په موخه.

**دفاعي هدف:** يو بل لامل چې مستشرقانو ته ئې دختيځو هيوادونو دعلمو دمطالعې لاره پرانيستلې ده داسلام دغوړيدو په وړاندې مقاومت په هغه هيوادو کې دې چې دمستشرقانو تر ماتې وروسته اسلامي ځاکو تر خپل نفوذ لاندې راوستلې وه.

**ددوی هدف:** داروپا ډيرو مؤسساتو او نګه والو زيات مالونه دمستشرقانو په واک کې ورکړې وه ترڅو دوی داسلامي هيوادو تګ لاره، احوال او اقتصاد ئې معلوم کړې.

سياسي او استمراري هدف: دايقينې خبره ده چې دمستشرقانو مهم هدف پر اسلامي هيوادونو باندې سيوري او نفوذ غوړول دې او پر دوی باندې ښکيلاك او ددې دسياستونو توجيه ده. مستشرقانو دخپلو ښو اهدافو درسيدو لپاره ډيرې رويې په کار اچولې دي چې له جملې څخه ئې:

(۱)دمسلمانانو په منځ کې دورورګلوی قضا کمزوري کول.

(۲) دفرقيزي ښې پلې کول په اسلامي هيوادو کې دفتنو رينښې پيدا کول.

(۳)دعربي دفصيحې دژبې دخاتمې په موخه ئې خلګ تشويقول چې دعوامو او محلې خلګو لهجه تعقيب کړې ځکه عربي دقرآن او حديث ژبه ده او دخلګو ديوځای کيدواو خط ومواصلاتو ژبه ده.

**فکري جګړه**

(۴)داسلامي ملتونو پر عاداتو او تقاليدو باندي يرغل تر څو داړتيا په صورت کي په اساني سره وکولای سی گټه څني واخلي.
(۵)د اسلامي ملتونو دادبياتو او ژبو مطالعه تر څو ددوی سره مفضانه اړيکی وساتي.
(۶)دغرب دلوی والی تشبيت او خلگو ته دا فکر ورکول چی يواځی غرب نجاد ورکونکی دی او غرب دمسلمانانو يو ټينگ دوست دی.
(۷) دمسلمانانو جلو نيول چی دوی يو ناتوانه او ناپوه قوت دی او دوی په سياسی، نظامی او نورو امرو کی دغرب څخه چاره نه لري.
(۸) دجهاد مقدس نوم بدنامه کول او دجهاد فکر دخلگو دفکرونو څخه وړل ترڅو ددوی په وړاندی هرډول مقادمت لمنځه ولاړ سی.
(۹) دمسلمانانو په منځ کی قومی، ژبی او منطقوی تعصبات راپورته کول.

# داستشراق وسائل

استشراق ډير وسائل لری چی دخپلو اهدافو درسيدو په موخه ئی کاروی کيدلای سی چی په لاندی ټکو کی خلاصه سی:

**الف: مستقيم وسائل:** دغه وسائل په ښکاره په لاندی شيانو کی تمثيليږي.   (۱)کتابو.

(۲)لوی، لوی یاداشتونه، قاموسونه او نړیوال دائرة المعارفونه.
(۳)ورځپاڼې، مجلې او خپرونې.
(۴)انجمونونهؤ، لیدنې او کانفرانسونه.
(۵)داسلام په اړه شك پیداکول.
(۶)پر عربي ژبه باندې تور ویل، فقه اسلامي بدنامه کول او دمسلمانانو دفقه علماء ترورول
(۷) دتاریخي اثارو چې دکفر په وخت کې تیر سوي دي راژوندي کول او درنښت ئې تثبیتول.

**ب: غیر مستقیم وسائل:** دغه وسائل دمستقیم وسائلو زیات خطرناك دي ځکه دا وسائل په داسې ډول پټ دي چې نښې ئې ښائې تر ډیرې زمانې وروسته ښکاره سي دغه وسائل په لاندنیو ټکو کې ارزیابي سي.

**۱:** دمستشرقانو پوهنځیانې چې دشرق دپیژندنې لپاره تاء سیس سوي دي او دغرب پوهنیزې حوزې.

**۲:** داسې شاگردان چې مسلمانان دي، دمستشرقانو په لاس ئې زده کړه کړې ده، ددوی دپوهنځیانو څخه فارغ دي پدې حق روزل چې داشتراق مفکوره په مخه بوزي او داسې کارونه وکړي چې ددوی استاذان ځنې ناتوانه دي ځکه دوی مسلمانان دي داسلام په پوښ کې، دمسلمانانو دزامنو په څهره کې داسلام پر ضد او داسلام دفعالیت پر ضد باندې کار کوي، اسلامي

مقدساتو ته سپکاوی کوی او دالله ﷻ په صفاتو کی، درسول الله ﷺ په شخصیت کی ، دمخورو مسلمانو مشرانو په شخصیت کی یو ډول شك پیداکول په لیکلی او شفاوی ډول او یو شمیر یرغمل کول. مگر دایمان په قوت، صبر او تقویٰ او په راسخ عزم سره کیدلای سی چی ددوی ټولی تؤطیې او دسیسې لمنځه ولاړسی او دابو دمخ کرښی سی. الله ﷻ فرمائی: **لَتُبْلَوُنّ فِي اَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ وَلَتَسْمَعُنّ مِن الّذِينَ اُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الّذِينَ اَشْرَكُوا اَذًى كَثِيرًا وَاِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا فَاِنّ ذَلِکَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُورِ.** (**ال عمران ــ اية** ۱۸۶)

**ژباړه:** خامخا به تاسو په مالو او ځانو خپلو کی وازمایل سی او خامخا ب تاسو داهل کتابو چی ستاسو څخه مخکی تیر سوی دی او مشرکانو څخه ضرر او سر زنشی واوری او که صبر او تقویٰ وکړی نو بیشکه دغه کار دمقصودی کارونو څخه دی.

# څلورم

# تنصير (تبشير)

## د تنصير تعريف

تنصير د هغه دعوت څخه عبارت دی چې صليبان ئی د عامو خلگو خصوصاً د مسلمانانو په منځ کی کوی څودوی په نصرانيت کی داخل کړی. او د حقيقت مخه نيول او عام خلگ غول دې ته تبشير وائی.

## د تنصير تاريخ

د تنصير ډله تر صليبی جگړو، استشراق او استعمار وروسته ښکاره سوی. تر پيدا کيدو وروسته د ستی دا شتراق ده ډلي سره اوږه په اوږه ودريده او اسلامی عقايدو د له منځه وړل او خرا بول يی اعلان کړه، دغه ډله د استعمار د ډلی سره هم ږغی وه ديوي ډلی وړا نديز دبلی ډلی لپا ره گټل کيده.

# دتنصیرمرحلی

تنصیر دمسلمانانو دنصرانیانو کولو لپاره په تدریجی ډول دری مرحلی په نظرکی نیولی دی:

(۱) **نصرانی جوړیدل**: په دی مرحله کی دوی کوښښ کاوه چی مسلمانان دخپل دین څخه مرتد کړی او په نصرانیت کښی ئی داخل کړی لکه چی دمسیحی مبشرینو څخه یو تن وائی: ځکه کو ښښ کوم چی یو مسلمان دمحمد ﷺ څخه وعیسویت ته راوبولم.

(۲) **دمسلمان وتل داسلام څخه** : په دي مرحله کی دوی غو ښتل چی با ید مسلما ن په پوره ډول داسلام څخه ووزی یالږ ترلږه ئی په اسلام شك پیداسی. (زولیمر) ومسیحی مبلغینو ته په نصیحت کی وائی: اې مسیحی مبلیغه! کله چی مو مسلمان داسلام په مړاندی دوه زړه، شك من کړی کولای سی چی ددین څخه ئی واړوی یعنی اسلام ته مو صدمه ورمول کیدلای سی چی خپل هدف ته ورلیږی دغه شك هم بس دی که څه هم نصرانی نس نوموړی زیاتوی ستاسو وظیفه چی مسیحی هیوادونه مو و محمدی ښاروته استوی دانه ده چی مسلمانان باید خامخا په نصرانیت کی بلکی ستاسو دنده او مکلفیت یوازی دادی چی مسلمان داسلام ددایری څخه وباسی نور به دده او دخدای ﷻ تر منځ رابطه نه وی ....))

(۳) **دا اسلام څخه لیری والی**: پدې مرحله کی دوی کوښښ کاوه چی مسلمان دعبادت په چارو کی دغیر مسؤل کس په ډول وګرځوی دعبادت په شعائره کی لکه لمونځ روژه حج او داسی نورو کی ئی بیخی بی پروا وګرځوی یعنی که ئی عبادت وکړی او که ئی ونه کړی ځنی بی پروا و ی. یا لږ تر لږه ئی په عبادت کی ست پوست کړی تر دعبادت په پوره ډول پریښودلو اونه واجب ګڼلو ته لاره خلاصه سی. په فرهنګ، اخلاقو او هیڅ ډول رویه کی دپیغمبرﷺ، اسلام او قرآن سره به دده نسی پاته، په پټو سترګو به دغرب تقلید کوی، په حقیقت دا نا تیجه چی مسمانان ددین څخه ایستل دی په ډیره ګرانه درګ سوی ده دنصرانی مبلغینو لپاره، پروا نسته چی یو مسلمان په پاسپورټ یا په پیژند پاڼه کی مسمان ولیکی خومهم خبره داده چی په فرهنګ، فکر اورویه کی غربی اونصرانی سی.

# دتنصیر اهداف

کیدلای سی چی دتنصیر موخی دتنصیر په تعریف او دتیر و مرحلو په اوږدو کی وپیژنو مګر په لاندی ټکو کی خلاصه کیدای سی .

(۱) داسلامی فکرون له منځه وړل او تثلیت مفکوره دودول.

(۲) دمسلمانانو عقیدی دخپل دین په وړاندی شکمنه ول

(۳) په قرآنی حقایقو کی تحریف پیدا کول او مسمانانو ځنی لیری کول.

(۴) درسول اللهﷺ دپیغمبری په صداقت کی شك پیدا کول.

**فکری جګړه**

(۵) دحکومتی نظام څخه دشریعت لیری کول.
(۶)دخلگو لیری کول داسلامی اخلاقو او رویو څخه.
(۷) دنصرانی ټولنو څخه داسلام مخه نیول .
(۸) ملتونه دخپل سیوری لاندی راوستل او اسلامی هیوادونه بند راوستل.
(۹) ددولتونو داقتصاد ملونه په خپل لاس کی راوستل او یا دخدمت په نامه نصرانیت خپرول.
(۱۰) دهیوادونو اقتصادی، قانون جوړونی، تعلیمی او مطبوعاتی سیستمونه جوړول دخپل مسیحی اهدافو په موخه.

# دتنصیر وسائل

ټول هغه وسائل چی مسیحی مبلغینو په کار اچوی دخپلو اهدافو درسیدو په موخه هغه ذدی چی مخکی می ذکر کړل خو په اجمالی ډول عبارت دی له:

**الف: مدرسی**: داسلامی ملتونو دناپوهی څخه په کټه اخیستنی، دخپلو اهدافو دشتون او دخپلو افکارو دخپراوی په موخه ئی مدرسی او مکتبونه جوړکړل لکه دلبنان دپایتخت بیروت کی دامریکا پوهنځی چی اوس هم خپله کرغیړنه دنده، پر مخ بیایی په تیر وخت کی ئی یو انجمن هم درلودی ددی لپاره چی دپارغینو اړیکی دپوهنځی سره ونه شکیږی او وکولای سی چی دخپلو بادارانو په خیر دوی هم هغه کرغیړنی دندی پر مخ بوزی. دمصر په پایتخت قاهره کی دامریکا یو بل پوهنځی ه سته چی کټ مت

دپورتني دانشکاه په څير کارونه پکښې کيږي. ديوشتمنى پيړي په پيل کې ډير کرکزونه دهمدی کار لپاره په نړۍ کې پرانستل سوه.

**ب: مجلې**: لکه د (العلام الاسلامى) مجله چې دفارس څخه خپريږي چې ځنې برخې ئې دکتاب په بڼه کرځيدلې چې شيخ محب الدين دغه ده (الغارة العلم الاسلامى) په عنوان په عربي ژبه ژباړلی دی يعنې پر اسلامي نړۍ باندې يرغل. دافريکائي ځوانانو مجله چې په عين شکل سره دنده پرمخ بيائي په ښکاره يو شکل لري خو په حقيقت کې دصليبي غرضونو دمخ بيولو په مو خه خپريږي. همداډول زيات شمير مجلې او جريدې په نړۍ کې خپريږي په ځانګړي ډول په افغانستان کې دغربيانو لخوا تاسيس سوي دی چې غربي دعوت پر مخ بيايي ځوانان بايد پوه چې ځوك وم او پر کومي خوا نځيږم.

**ج: تعليم په غربي بڼه گرځول**: داپه دی معنٰی دی چې تعليم او انصاف هم دغربيانو داهدافو رنګ اخستی دی او هم هرچيری چې ددوی توان دی دوست تر بريده ئې تعليم خپلې خوښې سره برابر کړی دی.

**د: ښوونيز بورسونه**: دبورسونو څخه هدف دادی چې غربيان داسلامي هيوادو څخه يو شمير زده کونکي په خپل مصرف او خدمت په نامه بيايي او په ښکاره داوائي چې ستاسو دتعليمي کچې دوړتيا په موخه داکار کوو خو په حقيقت کې دوی غواړي چې دغه شاگردانو ته خپل فکرونه ورازده

کړی او عقیده ئی تر خپل قابو لاندی راولی او بیا په اسلامی هیوادو کی کار ځنی واخلی.

**هـ**: روغتونو او رنځ پوهان چی دوی اسلامی هیوادو ته لیږی دوی په پوره ډول په مسلمانانو کار کوی.

**ز**: سیمنارونه او کانفرانسونه

**ح**: ورزسی ځایونه او فرهنگی انجمنونه

**ط**: دصلیبی مبلغینو کانفرانسونه او سیمنارونه چی دخپلو اهدافو درسیدو لپاره راټولیږی او یو دبل مشهری سره کوی نوموړی مبلغینو یو شمیر حلقی جوړی کړی تر څو خپلو مبلفینو ته دعوت رغنده لاری چاری ولټوی او لارښوونی ورته وکړی چی څنگه کولای سی چی مسلمانان دخپله دینه واړوی چی ددغو حلقو څخه ځنی په لاندی ډول وی:

- په (۱۳۲۴_ هـ) چی د (۱۹۱۰_م) سره سمون خوری په قاهره کی حلقه جوړه سوه دمشهور مسیحی مبلغ (رولیمر) په ابتکار داحمد عربی په کور کی جوړسو.
- په (۱۳۲۸_هـ) چی د (۱۹۱۰_م) سره سمون خوری په اسکاتلنډ کی بله حلقه جوړه سوه چی د (۱۵۹) په حدودوکی نړیوال تنصیری نمائندهگانو گډون پکښی زکړی.

فکری جگړه

- په (۱۳۲۹) کال کې چې د (۱۹۱۱_م) سره سمون خوري دهند په لکنو په ښار کې بله حلقه جوړه سوه چې (صموئیل زولیمر) هم پکښې وه.
- دقدس حلقه چې په کال (۱۳۴۳_هـ_۱۹۲۴_م) کې جوړه سوه.

**ي: دفرهنګي مرکزونو بنسټ ایښودل:** مسیحان دخپل فرهنګ دودې په موخه چې دمسلمانانو دپچیانو په فکرونو کې وده وکړي او غربي ژبه زدکړي په اسلامي هیوادو کې ئې فرهنګي رکزونه خلاص کړل لکه د (ARC)مرکز چې ئې دافغانانو لپاره په پاکستان کې خلاص کړي .

**ك: دکتابتونو بنسټ ایښودل:** عمومي کتابتونونه دمسلمانانو داولادو لپاره خلاص کړه چې دنصرانیت دکتابو څخه ډك وه او انجیل ئې په عربي ژبه واړوي او داسلامي ټولنې په هغه سیمو کې ئې مفت توزیع کړي چې ناپوهي هم هلته واکمنه وه. په جنوبي افریقا او نورو اسلامي هیوادو کې ئې دنصرانیت دڅرګند تیا په موخه رادیوګانې چالانه کړي.علامه پردي ئې دنصرانیت دخپرولو لپاره زیاتې خپرونې درلودې ئې او ځوانان ئې دخپل ادرسونو په لیږلو سره تشویقول چې ددوی رادیو واوري او بیا ددې لاې په اسانۍ سره وکولای چې دخپل دمسیحت کتابونه ورولیږي. ما خپله (مؤلف) په خپله سیمه کې ډیر داسې ځوانان لیدلي دي چې داسې کتابونه لري یو ورور چې دملك فهد دقرآن کریم په مطبوعه کې په مدینه منوره کې ئې کار کاوه وماته ئې قصه وکړه: نصرانیان دقرآنکریم په پوښتي (ټایټل) کې انجیل

چاپوی او بیائی دافریقا پـه سیرو پرتـو سیمو کی ویشی او داوره وائی چی دقـرآن کـریم دمـدینی منـوری ومطبـوعی چـاپ دی. همدغـه انجیـل پښـتو او فارسی ژباړی او بیائی دافغانانو دمهاجرینو په کمپو کی په وړیا ډول ویشی همدا ډول نور عیسوی کتابونه لکه (عیسیٰ په اسلام کی) او (عیسیٰ مسیح بیاراځی) کتابونه په مختلفو ناسبتو وخلگو ته پـه ځانگړی ډول وځوانانو تـه ویشی.

**ل: دنصـرانی ښـځو گمـارل:** ځینی نصرانی ښځی دنصرانیت دیـن دتبلیغ لپاره دمسلمانانو ښځو په منځ کی ئی گمارلی دی. دغـه د ښـځو گمـارل دنصـرانی دعیـانو دوسائلو څخـه یـوه برخـه ده چی پـه ټولـه دنیـا خصوصاً پـه اسلامی هیوادو کی ئی استفاده ځنی کول. دلته نور ځنی نور وسائل هم ستـه چی انسان ئی فکر کوی تر هغه ډیر خطرناك دی. ځینی ساده کسان په دی باور دی چی دتنصیر پروسه دغربیانو دجگړی سره چی پراسلامی هیوادونو باندی ئی تر سره کړه پای ته ورسیده او اوس هـیڅ شتـون نـه لـری. مگـر حقیقـت ددې خبری برعکس دی دتنصیر پروسه اوس هم مبارزه کوی. بلکی دوی دخپل ځان لپاره داسلامی امت اسلامی فکر او رشد په نظر کی نیولـو سره تـر پخـوا ډیـر ژور کار کوی. او دغه پروسه به تر هغـه بریـده پـای تـه ونـه رسیـږی چی ددوی موخه چی دمسلمانان عیسویان کول سرته ونه رسیږی. قرآنکریم ودغـه خبـری ته اشاره کوی: **ولن ترضٰی عنک الیهود ولاالنصاری حتٰی تتبع ملتهم.** ژباړه: هیڅکله به ستا څخه یهود او نصارٰی راضی نسی تر څو ددوی ددین پیروی ونـه کـړی.

په بل ځای کی الله ﷻ فرمائی: (**القتل: ولایزالون یقاتلونکم حتٰی یردو کم عن دینکم ان استطاعوا**) ژباړه: **تل به دوی ستا سره جنګیږی تر هغه وخته پوری چی تاسو دخپل دین څخه اړوی که وتوانیږی** نو دنصرانیانو جګړی په هر وخت کی ږمسلمانانو په وړاندی روانی دی، دښمنی ئی پاته ده مګر مبارزی ډول او رویه ئی تغیر پیداکوی. دمبارزی وسائل ومعاصری ټولنی دغوښتنی سره سم برابروی. دهمدې خبری پر بنسټ باندی دتنصیر پاڅون په اوس وخت کی په لاندی بڼه باندی کار کوی.

- دهبانیان او عیسوی مبلغیانو مسلمانان په پخوانی بڼه وعیسویت ته بولی او عیسویان ئی ګرځوی.
- روغتنونه، مدرسی، او فرهنګی ټولنی ددوی په حدودوکی کار کوی، رادیوګانی، تلویزنونه، مطبوعات او نشرات فرهنګی مسائلی ددوی په ګټه خپروی
- نوی دینی او اجتماعی مذهبونه دمسلمانانو عقل په زهرو کوی او دعقیدوی اصولو څخه ئی لیری کوی.
- داسلامی هیوادو په منځ کی ځینی سیاسی او ګوندونه جوړول که څه هم په ښکاره دتنصیر شعارونه لری خو په پټه دعیسویت لپاره پورتنی کارون تر سره کوی.
- داستشمار مؤسې لکه بانکونه یا نور تاء سیسات چی دمسلمانانو دافتصاد پر وده باندی ئی سیوری غوړولی دی او دمسلمانانو داقتصاد

دمنبعو دتخریب هڅې کوي دايو څرگند حقیقت دی چې نصراني مبلغینو دری شیان پیدا کړی دی چې دهغو په مټ ئې په دنیا کې ډیر نفوذ پیداکړی دی چې دری عبارت له: فکر، ناروغی او ناپوهي څخه دي، دوی کولای سی چې تر دغه درو پوښتنو لاندې په ښه ډول دملتونو په بیخ کې دکومك رسولو، دپوهنیزی سولې لوړولو، دمکاتبو په جوړولو و ښوونیزیو کورسونو ته جوړولو په بهانه خپلې ریښې وغځوي. دخپلو فکرونو، دتثلیث دعقیدې خپلو او دنصرانیت دمفکوری دغوځول په موخه ئې په کلی کې صحیح کلنیکونه، روغتنونه او تعلیمي مرکزونه جوړ کړل تر څو خلګ پر دوی باندی باور وکړی او ددوی سره مخامخ سی. دتنصیر گوند دافغاني ملت دجهاد دشرایطو، دهجرت ځایونو، بی کوریو، دربدریو، دکورنیو جګړو او مکاتبو او مدرسو دلنډیدو په نظر کې نیولو سره وپیتله چې دخلکو دعیسویانو کولو لپاره ډیره ښه زمینه مساعده ده. دنوموړی شرایطو څخه ئې استفاده وکړی دښیکنې او انسان دوستی په نامه ئې پورتنیو درو لارو څخه ئې دعیسویت کار پیل کړی. موږ وین چې په افغانستان کې تر سلو زیاتې غربي مؤسسې د(انساني مرستو رسولو) په عنوان کار کوي دغه مؤسسې په دوو ډلو ویشل سوی دي:

(1) دافغـــاني مرســـتو دشـــوری غـــړی مؤسســـې.

Abeney Coordination Body for Afghan Relief (ACBAR)دغه بخشش چې اوه پنځوس مؤسسې او نمائنده ګی لري

(۴۵) ئی غربی دی دغه مؤسسی دملل متحد څخه مرستی لاسته دبیارغونی په نامه راوړی په افغانستان کی.

## (2) هغه مؤسسی چی دشورا غړیتوب نه لری

هغ مؤسسی چی په پورتنی شورٰی کی غړیتوب نه لری شمیر ئی (۱۵) مؤسسو او سازمانو ته رسیږی چی دملل متحده ارگانونه، صلیبی ښاخونه، نړیوال صحی سازمانونه او نړیوال پروگرامونه ئی دمصرف توکی برابروی. ددغه مؤسسو بودجه په (۱۹۸۹_م) کال وسل میلونه ډالروته رسیده. یو شمیر نوری مؤسسی دطالبانو درژیم دسقوط وروسته رامنځته سوی دی چی بودجه ئی ماته معلومه نه ده پورتنی مؤسسی دننه په افغانستان او دباندی دمهاجرو په کیمپو کی خپل فعالیت کوی.

**دودی عرصه**: چی روغتنونو، صحی مرکزونو، دپایوازانو دتربیې دکورسونو او دډاکټرانو دروزلو څخه عبارت ده.

**دزدکړی عرصه**: په دغه بخشش کی عمومی زدکړه، صحی زدکړه، دښوونځیانو جوړونه، فرهنگی مرکزونه، دانگلیسی او فرانسوی ژبی زدکړی او نورو کاروته کار کیده.

**دکښت او کروندی عرصه**: په دی بخشش کی دتخمونو ویش، دابو دکانالونورغونه، دلارو رغونه او دبزرگانو دکښت او کروندی په اړه پوهاوی تر سره کیدی.

**دانسانی مرستو عرصه**: په دغه بخشش کی تحضی او هد یې دځانګړو اصولو له مخی خلګو ته ورکول کیدی.

دمؤسساتو دګډی شورٰی درسمی راپور لمخی دافغانستان په مختلفو ولایاتو کی (۲۳۵) پروژی په لاندی ډول دعملیت ډګر ته وتلی دی.

(۱) «۲۵» پروژی په غزنی کی

(۲) «۶» پروژی په هرات کی

(۳) «۳۹» پروژی په قندهار کی

(۴) «۳۵» پروژی په لوګر

(۵) «۳» پروژی په کابل کی

(۶) «۵» پروژی په لغمان کی

(۷) «۱۹» پروژی په کنړ کی

(۸)«۲۷» پروژی په پکتیا کی

(۹) «۴۳» پرژی په ننګرهار کی

(۱۰) «۱۱» پروژی په پکتیکا کی

(۱۱) «۱۰» پروژی په وردګو کی

(۱۲) «۵» پروژی په زابل کی.

دا هغه مرستی دی چی دشورٰی دناغږو مؤسسو پرته ئی تر سره کوی. ددغه ټولو مصرفونه او هڅو سره الحمد الله ددوی ټول کوښښونه په پوره ډول سره دناکامی سره مخ سوی دی، اوس هم افغانانو ویوه خدای ﷻ ته عقیده لری او دخدای ﷻ په دین ئې ټینکی منګولی لګولی دی، دایقینی خبره ده چی کوم چاته چی الله ﷻ هدایت وکړی هیڅ قدرت بیا ده هغه دګمراه کولو توان نه لری که څه هم په میلنو ډالر مصرف کړی، څومره ښه ویلی دی الله ﷻ:

**ان الذین کفرو اینفقون اموالهم لیصدون عن سبیل الله فسینفقون نها ثم تکون علیهم حسرة ثم یغلبون والذین کفرو والٰی جهنم یحشرون ط.**

ژباړه: بیشکه کافران ډیر مالونه خرسوی ددی لپاره چی خلګ دا الله ﷻ دلاری څخه منع کړی، ژر دی چی دوی په مالونه خرڅ کړی بیا به دوی پر خرڅ سو مالو باندی پښیمانی کوی بیابه مغلوب سی او کافران به ددوزخ لوری ته شړل کیږی

# دفکری جګړی اهداف

ددې جګړی بنسټیز موخه داسلامی فکر او عقیدی لمنځه وړل دی، دمسلمانانو دینی باورونه لمنځه وړل دی، او دا اسلام په دین منګولو لګولو څخه منع کول دی. داسی اسلام چی هم عقیده او هم دژوند زدکړه د. مګر

دهغه مرحلو چی واهدافو ته وسیدو لاره او په کار اچول سوی دی بیخی زیاتی دی کیدلای سی چی په لاندینیو ټکو کی خلاصی سی.

## وغربی ملتونو ته داسلام دخپریدو موخه نیول

ددې دین داهمه ریښو ښآخونو څخه دادی چی اسلام فطرت دی انسانی سلیم طبائع په ډیره مینه سره قبلووی دهمدی خبری پر بنسټ باندی دمشرکینو داسماع په اړه الٰهی لارښوونه کوی چی دشك پرته دقرآن کریم محضی او ریدل په نفس کی یو لو تحول راولی. لکه چی اللهﷻ فرمائی:

(**وان احد من المشرکین استجارک فاجره حتّٰی یسمع کلام الله.**)

**ژباړه**: که یو دکفارو څخه ستا څخه امن وغواړی امن ورکړه ترڅو داللهﷻ کلام واوری. کله چی دمکی مکرمی مشرکینو دقرآن کریم تاء ثیر کول ملاهضه کړی دی چی هر چا به قرآن کریم واوریدی دستی به مسلمان سو نو دمکی مکرمی حسدگر کافران په دی پوه سوه که داقرآن لوستنی او مسلمان کیدو لړی روانه وی نو دمکی خلگ به یو په بل پسی ټول مسلمانان سی دپلار او نیکه دین به پریږدی ددوی په وینا په نوی دین کی په داخل سی. نو له همدی امله دکافرانو مشر لارښوونه وکړه چی دقرآن دتلات پر موقع دی تشویش پیداکړی او خلگ دی په بیکاره او بی فائدو کارو باندی اخته کړی ترڅو دقرآن کریم داوریدلو او تاء ثیر کولو مخه ونیول سی ددی موضوع دروښانتیا په اړه اللهﷻ فرمائی:

**فکری جگړه**

**وقال الذين كفرو لاتسمعو لهذالقران والغوفيه لعلكم تغلبون ط.**

ژباړه: کافران ویل: قرآن مه اوری ددې قرآن دویلو پر وخت بې کتې خبری کوی ددې لپاره چې تاسو غالب سی. بناً غربیانو درك کړی وه چې په اروپا کې اسلام دغوړیدو په حال کې دی پر مخ دمځکې باندی بیل،بیل ملتونه ودغه دین ته ښه راغلاست وایی نو ددغه ویری چې ټوله غرب په اسلام بدل نسی نو په ټوله توان ئې داسلام دخپراوی دمنعی لپاره هسی پیل کړی.

# داسلامي څهری دسپیځلتیا مخه ډب کول

دا هدف دپورتنی هدف لپاره تمهید او وسیله ده دغه توری کرښی راکشول سوائې داسلام پر یوه لوری باندی نه دی بلکه داسلام پرټولو اړخونو باندی ئې راکشوی چې قرآن، سنت، پیغبرﷺ او فقه اسلامی پیل کړی دی او پر ټولو هغه شیانو چې اسلام دځان سره راوړی دی. دغه جنگ لټونکی پر اسلام او دمسلمان پر شرعی حقایقی توری کرښی راکشوی ددی لپاره چې دیوی خوا به دمسلمانانو رابطی دمسلمانانو سره قطعه سی او بی مرشده او بی آمده به سی چې ددوی دژوند تنظیم کوی دبلی خوا ئی دنامسلمانو ممانعت کوی چې مسلمانان نسی. څښتن تعالیﷻ فرمائی: **یرویدون ان یطفئو انورالله بافواههم ویاء بی الله الا ان یتم نوره ولو کره الکافرون.** ژباړه: دی غواړی چې په خپلو خلو

باندی دالله جل جلاله نور مړ کړی او الله جل جلاله څخه مخ واړوی مگر هغه څوك چی دالله جل جلاله نور تمام کړی که څه هم کافران ناخوښه وی.

# داسلامی امت په تاریخ کی شك پیداکول

صلیبی دعوت کونکو داسلامی امت په تاریخ کی شك پیداکاوه ښستیزه موخه ئی داوه چی ددی امت اړیکی دتیرو ځلاو څخه وشکوی تر څو دیو بی تاریخه او بی افتخاره امت په بڼه ښکاره سی، داشك دوی په داسی ډول پیداکاوه چی دتاریخ خلگ او اشتبا هاتی ئی راڅپړلی او دنقص لار به ئی پکښی پیداکول او بل به ئی دتاریخ په لیکنو کی زرین نقاط ورزیاتول چی نوی نسل یاراتلونکی نسل ددی تاریخ څخه دظلم، تیری، شکنجو او وینی تویولو پرته بل څه ونه فهموی. له بده مرغه دغه موضوع زموږ په تعلیمی خپرونو کی په توو نقطو کښی دملا خطی وړده: یو داچی اسلامی تاریخ لمنځه وړل او مسخه کول او په داسی بڼه منځ ته راوړل چی دنفرت او کرکی وړ وی او متشرقینو ټول تاء لیفات په همدی موضوع کښی ککړ دی. دوهم داچی داروپا تاریخ ته ښکلا ورکول او ددوی دبریالیتوب نقطی ذکر کول.

# دموجوده اسلامی امت په اړه شك پیداکول

ټول مستشرقیان او ددوی دفکرونو ملاتړی په دی بسنه نه کوی چی زموږ تاریخ لمنځه یوسی بلکی زموږ اوسنی حالت هم ددښمنی ترغشی لاندی راولی، مسلمانان چی په دردناك حالت کی قرار لری نودی دشك په پیداکولو

سره ددی څخه بده کته اخلی ددی شك اچولو تر شا ددوی موخه داده چی دنوی نسل په زړه کی دناهیلی تخم شنه کړی هغه نسل چی داوسنی دردناك، شاته پاته او کمزوری حالت سره لاس او ګریوان دی. دوی غواړی چی نوی نسل دی ته اړ کړی تر څو داسلام پرته دبلی لاری څخه خپلی هیلی پوره کړی او نوی نسل ته داسی فکر ورکوړی چی دغرب پرته ستاسو وده او ترقی شونی نه ده.

# دمسلمة امت په راتلونکی کی شك پیداکول

غربیان مسلمانانو ته ددوی دغولونی په خاطر داسی فکر ورکوی چی تیر تاریخ مو (خدای مه که) دظلم، بدی، فساد او مینی تویولو ډك دی اوس حالت مو دکمزوری بڼی او کیفیت څخه جوړ دی نو ستاسو هغه حالت چی ددی دووتاریخو څخه زیږی یعنی راتلونکی حالت به مو دودی او تلنالوجی په پیژندلو کی پر څه حال وی؟ ددی پوښتنی په جواب کی ویلای سو: که ستاسو خبری هم در سره ومنو نو موږ وایو چی دریشتیاهم دتور تاریخ او کمزوری حالت څخه کمزوری حالت زیږی او که موږ وغواړو چی ځانته یو روښانه راتلونکی جوړ کړ بیخی کیدلای سی اونه غواړو چی ددی لاری پرته (ددین پرته) دی دبلی لاری خپل رالونکی وټاکو که موږ دتیر تاریخ پاڼی او اوسنی حالت ټوټه، ټوټه کړو او ټولی اشتباهاتی چی زموږ دخپله لاسه پیښی شوی دی هغه ایسته کړو کولای سو چی په راتلونکی دریشتیانی دین په ملنه یو

روښانه راتلونکی وښاکو. ټول غربیان دا شعار هر وخت ورکوي: چې موږ مسلمانان په مخ کې دغرب پرته دتمدن لپاره نه لرو ددوی په اند موږ لره په کار ده چې دغریب تقلید وکړو او په هر کاري ددوی تر شا ولاړسو او تر شونډانو لاندی دازمزمه کړو چې: عدالت هلته دی او بی انصافی زموږ سره ده، ازادی هلته اود یکتاتوری زموږ سره دی، وده او پرمختګ هلته دی او شاته تګ اوپاته والی زموږ سره دی، صحت هلته دی اوناروغی زموږ سره ده، شتمنی هلته ده او ناداری او مسکنت زموږ سره دی، زور هلته دی او کمزورتیا زموږ سره ده، پوهه هلته اوناپوهی زموږ سره ده .....!!! داهم دمتشرقانو اوغربی دعوت کونکو پیغام دی چې داسلامی امت په راتلونکی تاریخ کې شك اچوی او ډیر ځوانان په دی غولیدلی هم دی.

# داسلامی امت دشخصیت انحلال

انحلال دمعنٰی له پلوه دګډیدو او لمنځه وړلو په معنٰی دی لکه مالګه چې په اوبو کې ګډه کړی یا بوره په چایو کې ګډه کړی، دخبری پر بنسټ داسلامی امت دشخصیت دانحلالولو څخه موخه داده چې داسلامی دین څخه کرکه راسی او دیو مسلمان په ذهن کې داسی ورکړی چې ونصرانیت ته نیژدی سی. لکه چې یو څوك تیر تاریخ په تاریکی کې ووینی داوسنی حالته کمزوری حالت څخه کرکه پیداکړی او راتلونکی حالت په ناورین کې ووینی نو طبعی خبره ده چې خپله لاره به پریږدی او دنورو دلارو تعقیب کړی او دخپلی تګ

لاری شخصیت او هویت ورك كړی او خپل ځان ته به ګوری خپل مقدسات به دهیری په لاره خوشی كوی. نوربه نو دامد ، نهی او مشوری فكر د اسلام له نظره نوی اورسره هرڅوك چی امر ورته كوی ددلیل پرته به ئی منی ځكه چی دده څخه دخپل دین شخصیت ورك سوی دی خپل ارزښت ئی دلاسه وركړی نور نو دبل چا طابع دی، ددښمن په وړاندی دذلت احساس كوی. ددی موضوع سپیناوی لاندی بیت كوی چی دتمیم دقبیلی یو تن شاعر پردوی دیر غل پر مهال ویلی دی:

(**ویقضی الامرحین تغیب تمیم*      ولایستاء ذنون وهم شهود***)

ژباړه: دتمیم دقوم شتون اونه شتون یو ډول دی كه موجودنوی څوك ئی دانتظار لپاره نه كښینی تر څو نظظ وركړی او كه حاضر سی څوك مشهوره نه ځنی اخلی.

# دنوو پرهنګی عناصرو شتون

متشرقانو او فكری جګړی جنګیالیو دپورتنیو اهدافو درسیدو په صورت كی یو نوی فرهنګ منځ ته راوړی دی چی د اسلامی فرهنګ ځای ونیسی او دغرب خپرونی ئی په نسمو نوجیهاتو سره عقلونه دتباهی سره مخ كوی. سیاسی او اقتصادی نظام او ډپلماسی تری جوړیږی، نوموړی جنګیالی ځرنګه چی غواړی خپل او دنورو تګ لاری هغسی ئی تنظیمو ی په پایله كی ئی غواړی چی اسلام تنظیم كړی یعنی اسلامیت دمیمان لپاره یواځی په

نسب، شخصیت، پیژندن پانه او پاسپورټ کی خلاصه کړی اونور عملیات بیخی لهمنځه یو سی. او په سیاست، تعلیم، اقتصاد ،فکر، تقلید اونوری کی دسیکولر غرب سره هیڅ توپیرونه لری. په داسی حالت کی دمسلمانانو عقیده دیوداسی ناورین سره مخ ده چی ریشتنی ژوند ئی غوښتنه نه کوی. بلی: دهمدی خبری له امله غربیانو مدرسی، مکتبونه او نور تعلیمی ارگانو دمسلمانانو په منځ کی جوړوی تر خو ددی لاری ناپوه تمدن، ناسم فکر او دغرب تقلید او عقیده قبلول په اسلامی هیوادو کی مطرح کړی.

# داسلامی پاځونونو تخریبول

دښښتن تعالیٰ ﷻ حکمت دی چی دحق او باطل په منځ کی به دوامداوه کشمکش او مبارزه روانه وی هره وخت چی یو دور پای ته ورسیږی هتماً به دمبارزی بل دور پیلیږی. مگر ددی مبارزی په بهیر کی به بریالیتوب دحق په برخه وی. څکه دا اللهﷻ فرمائی:

**بل نقذف بالحق علی الباطل فید مغه فاذاهو زاهق.**

ژباړه: بلکی موږ حق پر باطل راغورځوو یعنی بریالی کو ئی، سر به ئی ماتیږنو ناڅاپه به باطل لمنځه ځی. هرڅوك چی دحق ملگرتیا او دفاع کوی تل به غالب وی څکه اللهﷻ فرمائی:

**ولقد سبقت کلمتنا لعبدنا المرسلین انهم لهم المنصورون وان جندنا لهم الغالبون ط**

ژباړه: بیشکه زموږ وعده دخپلو لیږلو سو بندگان لپاره صادره سوی ده

بیشکه زموږ د سلا تنصرت کړل سوی ړی او بیشکه زموږ لښکر غلبه کونکی دی هم دا ډول رسول اللهﷺ په یو صحیح رایت کی فرمائلی دی: زما دامت څخه به خامخا یو ډله تر قیامت پوری دحق لپاره مبارزه کوی. دهمدی الٰهی ژمنی پر بنسټ که څه هم مسلمانان په یوه نامناسبه حالت کی قرار ولری، ددښمانانو مکرونه دوچلونه ورته متوجه سی خوبیاهم میړانه او عزم لری چی خپل ځانونه دا اللهﷻ په لار کښی نذر ورکوی یعنی قربانوی ئی او دحق لپاره مبارزه کوی. داسی کارونه په حقیقت کی دا سلامی پاڅونونو گی چی دامت دیوالی او ژوندی والی لپاره، دا سلام وحقیقت ته بیرته دستنیدو لپاره او ددښمنانو دچلو دښکاره کولو لپاره راپورته سوی دی، خنډ اچول دی هیڅکله دوی داسی پاخونونه نسی زغملای ځکه دوی پوهیږی که مسلمانان دیوه رهبر لاندی واوسیږی چی دوی ته دوست او دښمن ورښئی، ښه اوبد ورښئی او دخپلواکی او ازادی پر لاره ئی باوری کړی چی دغربیانو بریالیتوب شونی نه دی نو په دی لار کښی دوی پوره زیار باسی چی ددا سی ډلو مشران بدنامه کړی او دخلگو په منځ کښی ئی بدښکاره کړی او دهیڅ ډول درواغو او تهمتونو څخه مخ نه اړوی چی پر دوی ئی ولگوی ددوی دبدنامه کولو لپاره تر څو خلگ ځنی پیزاره کړی او خلگ ئی اطاعت ونه کړی او ددوی پاڅونونه دماتی او تخریب سره مخ سی.

# دفکری جګړی وسائل

دفکری جګړی جنګیالی او ملاتړی دخپلو اهدافو درسیدو لپاره چی مخ کی مو بیان کړه دیو ډول وسائلو څخه کار اخلی چی کیدلای سی چی پر دوو برخو وویشل سی.

**الف:** ښکاره وسائل: چی روښانه او ښکاره دی

**ب:** پټ وسائل: چی په پټ ډول ئی سرته رسوی او پای ئی ډیری خطرناکی دی.

ښکاره وسائل: دغه وسائل په تبثیر، دغرب غلامی او سیکلوریزم سره تمثلیږی. دتبثیر بیان مو مخکی وکړی پدی ځای کی دغرب غلامی او سیکلوریزم تر ارزیابی لاندی نیسو.

دغرب غلامی: دغرب غلامی ددی څخه عبارت ده چی په هر لحاظ یعنی تعلیم او تربیه، فکر او تقلید کی دغرب په خیرو ګرځو همداډول په اقتصاد، کلچر، عادت اونورو کی ددوی په خیرو ګرځو یعنی خپل ژوند ددوی په ډول جوړ کړو.

سیکلوریزم: سیکلوریزم ددی څخه عبارت دی چی دیانت او سیاست سره بیل سی یعنی عبادت یوائی په مسجد کښی خاص کړل سی او په دولتی، اقتصادی ښوونیزو او اجتمائی چارو کښی دین ته هیڅ ځای ورنه کړل سی ددی لویی بلا دخطرونو مکمل بیان به انشا آلله دپټو وسائلو په عنوان کی بیان کړو داهغه وسائل دی چی دفکری جګړی جنګیالی ئی کله په

کرار، کرار ددی جگړې لپاره استعمالوي او کله ئې په ټولنيز ډول په چټکۍ سره استعمالوي. کله په يوه داې وسائلو بسنه کوي چې دکار له پلوه چابك او دتکليف او زهمت له پلوه لږ وي ښائې سيکلوريزم هم ددې ډلې وسائلو څخه چې دتاء ثير له او اهميت له قابل توجه وي، دښمنانو چې په چټکۍ سره په اسلامي هيوادو کې ځاې ورکوي او په ذهنو کې دې هم په لويه پيمانه ځاې ورکوي چې له همدې امله په ډيرو اسلامي ټولنو کې کې داسې خلګ ستة چې دسيکلوريزم په مټ داسې ګرځيدلي دي چې يوائې په نامه، پيژدن پاڼه او پاسپورټ کې مسلمانان دي په عمل کې هيڅ اسلام نه پيژني او په دود، سلوك او تعليم کې سيکلوريزم دي.

**پټ وسائل**: دغه وسائل هم ډير ډولونه لري چې مهم ئې په داسې ډول دي:

پر دې ټينګار چې دين او دولت سره بيل سي (سيکلوريزم) په ځانګړې ډول (سيکولارسيم) چې په عربي ژبه ګې علما نيت سره تعبير کيږي. ظاهراً په دې معنٰى دي چې علم ګرځيدل يعنې ښه پوهيدل مګر حقيقت دادې چې ددغه پايلې او علم په سلهاوو زره ميله سره ليرې دي. دايو غولونکې شعار دې، ددغه کار دودونکې غواړي چې ساده او کمزورې خلګ چې ژر خطاوزې او دهر چا اواز ته جواب وائې ددغه نامه په پوښ کې خطاباسې او خپل نفوذ پکښې پيداکړي. بالاخرة دسيکولاريسم څخه مطلب بې ديني او دمذهب څخه ليرې والې دې چې پربنسټ ئې بايد په ژوند کې ددين هيڅ اول نه وي او ډير ښائسته معنٰى ئې داده چې وو ايو سيکولاريسم معنٰى ددين او دولت څخه

لیری والی. دسیکولاریسم موضوع نوی عارضه ده چی پر مسلمة امت باندی راغلی ده او په اسلامی دین کی کوم اصل نه لری. داسی دین چی خپلو پیروانو ته ئی دژوندانه هر اړخ ښودلی دی بلکی ددنیا او اخرت دواړو بریالی لاری ئی ورته ښودلی دی. داسی کامل دین دی چی داسی اصول پکښی بیان سوی دی چی مسلمانانو ته سیاسی، اجتمائی، اقتصادی او ښوونیز لاری چاری په بریالی بڼه ښئی. ټولی مسئلی ئی دپنځو اړینو احکامو لاندی راوستل دی (واجب- مستحب- حرام- مکروه او مباح) نو هرکار چی کول ئی ضروری وی واجب ورته ویل کیږی او په پریښولو ئی انسان گناه کارگرځی او هغه کار چی په کولو ئی ثواب وی مستحب ورته ویل کیږی او کوم کار چی کول ئی منعه وی حرام ورته ویل کیږی او هغه کار چی ځان ځنی ساتل غوره کاروی مکره ورته ویل کیږی او هغه کار چی کولو ئی ته ثواب وی او نه عذاب وی مباح ورته ویل کیږی اوس نو که ته نړی کی ځوك وگوری هیڅ اقتصادی، سیاسی، اجتمائی کار ددغه پنځو څخه وتلی ندی حاصل داچی اسلام هر څه بیانوی او ځوك چی په سیاست کی ځوك ددین دلارښوونو څخه منعه کوی او دین او دولت سره بیلوی په حقیقت کی انسان دخپل دین څخه بیلوی. دتعجب خبره خو داده چی نن دښمنان دپوهاوی په نامه مسلمانان غولوی او حال داچی که داروپا تاریخ ته وگورو دوی خپل ددینی، سیاسی، اجتمائی ځایونه درعایت سره دپوهاوی وغوړیدو ته امده سول. اسلامی نړی هیڅوك تر اروپایانو په ظلم، دیکتاتوری، فکری بندیز او تضادکی زیات نه

پیژندی. مسلمانان هیڅ حلقه دکلیسا تر حلقی ظالمه نه پیژندل چی خلګ ئی دهر ډول موښت څخه راګرځول او پر نوو فکرو او اخلاقی ابتکاراتوئی خلګ شکنجه کول. زموږ دین نه یوائی چی دعلم او فکر دین دی بلکه نوښت کونکو او په علم ئی وده کونکو ته مکافات هم ورکوی. دپوهانو مرتبه هم دخدایﷻ او هم دخلګو په وړاندی لوړه ارزیابی سوی ده. ددین خپل پیروان دی ته رابولی چی خپل خدای وپیژنی او پر یووالی ئی باور ولری او دنړی دمیلنونو طبعی شیان څخه په دقیق فکر استفاده وکړی. اللهﷻ فرمائی:

(یرفع الله الذین امنو منکم ولذین اوتوالعلم درجات)

ژباړه: اللهﷻ دهغه کسانو درجی پورته کوی چی ایمان ئی راوړی دی ستاسو څخه او دهغه کسانو څخه چی علم ورکړل سوی دی په بل ځای کی اللهﷻ فرمائی:

قل انظرو ماذافی السماوات والارض وماتغنی الایات والنذر عن قوم لایؤمنون.

ژباړه: ووایه: وګوری: څنګه شیان په اسمانو او مځکو کی دی، ګټه نه رسوی دغه نښانی او ویرونکی شیان وهغه کسانو ته چی ایمان نه لری. که دااللهﷻ پورتنی وینا ته وګورو نو اسلام دعلم پوهاوی لارښوونه کوی. دکفارو د(سیکولاریسم، علمانیت) پورپاګند ته هیڅ اړتیا نسته بلکی یوازی دااسلام دسپیڅلی دین بدنامول دی او خلګو ته داپه غوږ ورکول دی چی اسلام دپوهی اجازه نه ورکوی اسلام (العیاذبالله) یوازی زور او ظلم خلګو ته ورښئی . ددغه ویروس وهل او په جراثیم ککړ شعار مسئولیت د (علی

عبدالرازق) پر اوړو دی چی یو کتاب ئی د (اسلام او اصول حکومت) پـه نامـه لیکلی دی. نوموړی پـه دی کتـاب کـی نابخښـونکی افتـرات او اتهامـت پـر اسلام او اللهﷻ بانـدی کـړی دی اوویلی ئی دی: اسلامی شریعت یـوائـی یـو روحی شریعت دی هیڅ اړه دحکومت او دنیاوی چارو سره نـه لـری. درسول اللهﷺ جهاد دپاچاهی له پاره وو دااللهﷻ لاره نه وه (العیاذباالله) نوموړی زیاتـه کـړی ده: درسول اللهﷺ دزمانی حکومت یو گډوډ او بی خونده حکومت وو. نوموړی داصحابو داجماع منکر دی په ځانگړی ډول ده ویلی دی چی دخلفاؤ راشدینو حکوت یـو بی دینـه حکومت وو (العیاذباالله) پـه همـدی ترتیـب د (سیکوریزم) پروسه تر نن ورځی پوری پـه نړی کـی روانـه ده پـه ټولـه نـړی کـی هیڅ یـو اسلامی هیـواد نـدی پاتـه سوی چی دغـه پـوچ مفکـوره دی نـو وی ورسیدلی. بلکی په اولنی حالت کی ټول اسلامی هیوادونه دداسی گوندونو شاهد دی چی دااسلامی شریعت پر تطپیق ئی قیام کړی دی او دین ئی یـوائـی په مسجدو پوری خاص کړی او زیار باسی چی دیـن وسیاسی، اقتصادی او ښوونیز ډگر ته راوه نه وزی بناءً سیکلوریزم دغربیانو یو لویه او قوی سلاح ده چی دااسلام پرضد ئی کار وی. پـه تعصب سره باید ووایم چی دغـی سلاح زخمونه جوړ کړی دی او تر ډیره حده ئی اغیزی شیندلی دی یعنی په ټوله نـړی کـی داسـی هیـواد نسـی پیداکیـدلای چـی هلتـه چـی دژوندانـه ټـول اصـول دااسلامی شـریعت سره برابـر وی بلکـه ددیـن او شـریت تطبیقـول قانونـاً جـرم پیژندل کیږی او په دی جرم کی مسلمانان په سخته سزا محکومیږی.

## فکری جگړه

# (د سیکولارسیم د خپرید و وسائل)

د سیکولارسیم (علمانیت) ډیر قوی وسائل لری چی اصول او قوائد ئی ثبت سوی. ددغه ناوړی مفکوری تل پاتی کیدل او خپریدل دټولنی په منځ کی خصوصاً د پوهانو، روڼ آند، پوهنځیانو او علمی مرکزو په منځ کی تضمینیږی، کیدلای سی چی په لاندو ټکو کی خلاصه سی.

(۱) **خبرتیاوی او مطبوعات:** کوم کسان چی د سیکلوریزم په خپرولو کی خپل توان او قوت سره ئی دنشرولو او خپرولو وسائل لکه ورځپانی، مجلی، رادیوگانی، تلویزنونه او داسی نور ئی په خپل کنترول کی راوستل ځکه دوی پر دی باوری سو او پوه سول چی دغه وسائل دیو عقیدی له منځه وړلو لپاره او دبلی عاقیدی پلی کولو لپاره دیوی عقیدی پر ضد باندی نظر ورکولو لپاره او بلی عاقیدی دملاتړ کولو لپاره څومره اثر. نو د سیکولارسیم دتبلیغاتو لپاره او داسلام دکمزوری کولو لپاره بیل، بیل ډول ددغه وسائلو څخه کار اخلی. په اوسنی وخت کی ټول رسنیۍ لکه تلویزون، رادیو، انټرنیټ او داسی نور ددښمن په لاس کی دی څه چی ئی زړه غواړی هغسی کوی هیڅوك ئی مخه نه نیسی، همداډول غربیان داخلاقو او ادابو په خلاف فلمونه جوړوی او ځوانان په ئی په نړیوال تلویزون کی خپروی په کوم ځای کی چی تلویزون نه وی هلته لوڅ یانیمه لوڅ عکسونه لیږی تر څو ځوانان په عیاشیو اخته سی. درادیو څپه له لاری داسی خبری نشروی چی دځوانانو

عمومًوی فکرونه ودی ته راارړوی چی داسلامی هیوادونو ګټی دغرب په ښه کیدوکی رانغښتی دی.

# تعلیم او تربیه

غربیانو دتعلیم او تربیی ډول دخپلی خوښی سره سم دابتدائی څخه تر لوړو زګړو پوری نیولی دی هغه لوړی زدکړی چی دټولنی لپاره دپوښتیو دتیر حیثیت لری، دهری ټولنی دهیلو پوره کیدو یوائنی لاره تعلیم او تربیه ده لکه چی دټولنی دشاتګ او ماتی لامل دتعلیم او تربیی پریښودل دی تعلیم دیوه ملت دشخصیت معیار دی اد تربیه دټولنی دمیړنیو او زړور مفکرینو دسرتاج دی. همدالامل دی چی سیکلوریزم خپل ټول تاکتیکونه ئی په نړی کی وتعلیم او تربیی ته بیل کړی دی تر څو په پوره زور سره دمسخر کولو په موخه دنړی دتعلیم اوتربیی ملونه په خپل لاس کی واخلی ترڅو ددی پروسی دلاری وکولای سی دراتلونکی نسل تربیه وکړی اصلاً ددین څخه بی برخی کول دی او دنوی نسل ددین څخه محرومه کول دی. له بده مرغه په نړی کی په ډیرو اسلامی هیوادوکی داکار سوی دی او په ډول، ډول رنګونو او ښو پلی سوی دی. پدی ځای کی ئی څو شکلونه په لنډ ډول بیانوم.

(۱) وبی دینو او له مذهبو زدګړو ته خلګ تشویقول.

(۲)ددینی زدګړوپه طالبان پسخند وهل او په ټولنه کی ئی رول راکمول.

(۳) دنرو او نجونو ګډ تعلیم.

## فکری جګړه

(۴) پردینی مدرسی باندی تنگی جوړول.

(۵) دترقی او ودی په نامه یو مضمون په تعلیمی نصاب کی زیاتول دسیکلوریزم دنظریاتو مطابق.

(۶) دخارجی مکتبو او مدرسو جوړول.

(۷) ددینی علومو دښوونکو او دعصری او سانی زدګړو دښونکی تر منځ توپیر پیداکول او په امتیازاتو کی ئی توپیر کول. داسی ډیری نمونی سته چی دښمن دهغه تر پوښ لاندی فعالیت کوی، زما په آند هیڅ یو اسلامی هیواد به خلاص نوی چی دپوتنیو لومو څخه دی خلاص وی همدا ډول دخلګو ویشل وسیاسی خلګو او مذهبی خلګو ته یو بله نمونه دتعلیم دمستخر کولو لپاره. یقیناً دایوه دردونکی حالت دی چی موږ مسلمانان ژوند پکښی کو دعربی ژبی ښوونکی دکیمیا ، فزیك او نورو دښوونکی په پرتله نیمه مرتبه لاهم نه اخلی آن تر دی یو محاسب تر یو دینی عالم او حافظ په رتبه کی لوړ دی.

# په ښوونه او روزنه کی دسیکولر کیدلو پایلی

په ښوونه او روزنه کی سیکولر کیدل بیخی ناخوښی او دردناکی پایلی لری ددغه کار په سبب اسلامی ټولنه وشاته ځی او دسقوط سره مخ کیږی

دجامعي يو فکر پر بيلو فکرونو باندې ويشل کيږي دغه په دې پايلې په لاندنيو نقطو کې خلاص کېدلای سي:

1. يوه طبقه دروڼ آند په نامه رامنځته کول چې دقرآن يوازې نوم پېژني او دحرفو په اړه ئې يوازې رسم الخط پېژني نور نو داسلام په اصولو او اساساتو نه پوهيږي.
2. علماء او فرهنګيان پر دوو برخو وويشل : الف علماء دين. ب: ددنيا علماء.
3. ددينې علماؤ او دطبعي علومو دعلماؤ په منځ کې بيلتون راوستل.
4. دنوو هيلو او اسلامي امت دانتظاراتو تر منځ فاصله پيدا کول، روڼ آندي او فرهنګيان ددې کارته هڅول.
5. کوچنيان او ځوانان ددينې علومو دزدګړو څخه متنفر کول.
6. داسلامي امت رابطه او پيوند دتير او علمي او فکري ميراث څخه پرې کول.
7. دواکمني په ځايو کې دسيکولر او قانون ځای نيول دی دينې لاربنوونې شاته پاته سوې دي.
8. خلګ ددين داهميت څخه بې پرواکول او په ديني علماؤ پسخند وهل.
9. مسلمانان دماتې او شاتګ خواته بيول او نورو ته اړ کول.
10. شريعت دخلګ دژوند دهر اړخ څخه بيول.

(۳) **سیاست**: هر کله چی دسیکولران په دی وتوانیده چی خپل سیوری پر مطبوعاتو، خپرونو او تعلیم باندی وغوړوی، دمشرتابه او ماکمن مرکزونه ته ئی لار پیداکړه طبعی خبره ده چی سیاسی ملونه به هم دخپلو معتقداتو برابر عیاروی او په خپل لاره کی به اخلی همدی خبری پر بنسټ باندی داسلامی نړی په هیوادو کی د سیکولاریستی سیاست دپلی کیدو له حال کی دی او هیڅ پیوند دالٰهی شریعت سره نه لری، په هیڅ کار کی وخدایې قانون ته رجوع نه کوی، بلکی دایو داسی سیاست دی چی (جان جاك روسو)، (لاماتین) او (افلاطون) پر نظر یو باندی ولاړ دی نوموړی کسانو ددین سره هیڅ پیژندنه نه درلوده، بالاخرة دریمی نړۍ کورنی او بهرنی سیاست دغرب دسیکولر نظریاتو مطابق جوړیږی داکار هم دزیاتو دلائلو په شتون کی دنباغلی دښمن لخوا سوی دی.

(۴) **قانون او محکمی**: مسلمانانو دتاریخ په اوږدو کی داسلامی شریعت پرته بل شریعت او داسلامی قانون پرته بل قانون نه پیژندی هغه شریعت او اسلامی قانون چی دپاك قرآن حدیث څخه چښل سوی دی. له بده مرغه دشریعت ځای سیکولر او کفری قانون نیولی دی هغه قانون چی موږ دعقیدی، ټولنی او چاپیریال څخه نه دی جوړسوی، ددغه قانون په راتلو سره ساتنه، عدالت، امنیت، عزت، ددین احترام او دمال ساتنه له منځه تللی ده او ځای ئی فساد، ظلم، خیانت، او ویری نیولی دی، دټلنی حیثیت او شخصیت دتیری او تجاوز په ډگر کی واقع دی. اسلامی هیوادونه دښکیلاك ددیب تر

منگولو لاندی راغلی دی خدای ﷻ بنده گان هر چیری په تورو ځوکی ایسار دی.

(۵) **هنر او ادبیات**: اسلام هیڅ کله دادبیاتو پر دوو، وزو یعنی دشعر او نثر په وړاندی ددښمنی موقف نه دی نیولی، او هیڅ وخت ئی دشاعر په شاعرانه تخیل او اعتبار باندی بندیز نه دی لګولی. بلکی اسلام دشعر او ادبیاتو لپاره د(نوبل) تر جائزی لوړی او ګران قیمته جائزی ټاکلی دی ددوی دتشویق او ترغیب لپاره لکه چی اسلام دشعر څخه سلاح جوړوی او بیا په مټ ددښمن سره مبارزه کوی. او ددغه شعر په واسطه ئی درسالت دمبادیو خپریدل کړی دی، تر ټولو لویه خبره داده چی رسول الله ﷺ خپله شعر ته غوږ نیولی دی او دشعر اوریدل ئی خوښ کړلی دی ځکه په کوم سړی چی به رسول الله ﷺ پوه سو چی شاعر دی نو ورته ویل به ئی چی شعر راتهووایه ځکه امام مسلم دشرید رضی الله عنه څخه روایت کوی چی شرید رضی الله عنه وویل: یوه ورځ تر رسول الله ﷺ تر شا سپور وم (پر یه سورلی باندی) رسول الله ﷺ راته وویل: (**هل معك من شعر امیه بن الصلت شئ؟ قلت نعم، قال: هیه فانشد ته بیتاً، فقال: هیه ثم انشدته بیتاً، فقال: هیه حتی انشد ته ماء بیتٍ**) **ژباړه**: دابو صلت دزوی امیه یو شعر دی پیاد دی؟ ما ورته وویل: بلی، ده مبارك راته وویل: شروع یی کړه، یو بیت می ووایه، ده مبارك بیاوویل: وی وایه بیا می یو بیت ورته ووایه، ده مبارك ووایل: وی وایه: په دغه ترتیب می سل بیتونه ورته وویل.

**فکری جګړه**

ریښتیا هم اسلام ادبي نصرونو او شعري تړتي خوندوري ښودلي دي. او دمنظمو لړ لیکونو په وړاندې ئې لارښوونې کړې دي او دائي دیو قوت په ډول داسلامي ټولنې داصلاح او ګټو په لاره کښې مؤظف کړې دي داهم داسلام پاملرنه ده دادب ولوري ته ده، داهم ښکاره خبره ده چې اسلام دایو مؤثر او ښکلي قوت موندلي دي چې په زړونو کښې تر ټولو وړاندې تاء ثیر کوي. سیکولرانو چې ددې نقطیې په اهمیت پوه سوه نود سمدلاسه وصحنې ته راداخل سوه بده استفاده ئې ځنې وکړه او ادب پیوند ئې ددین سره پرې کړې په پایله کې ئې دشاعر ملونه خوشې کړل او دې ته ئې دعوت کړې چې شاعر کولای سې هرڅه چې وایې باید وي وایي او هر څه چې دده طبیعت ورته وایي په هغه ډول ئې باید تعبیر کړي. بله خبره داده چې ددوي په آند باید شاعر وخدای ﷻ ته وشریعت ته سر ټیټ نه کړي او اسلامي ارزښتونو او تقلیدونو ته باید پاملنه ونه کړي ځکه ددوي په آند دا ډول کارونه دشاعر په کارو کښې خنډ اچوي همدادول ئې ادبیانو ته دا (تلقین) ورکړې چې شعر باید په روا او ناروا سره ونه پیژندل سي بلکې باید په ښائسته او بدرنګه سره باید وپیژندل سي. په همدې ترتیب ئې دشعر او ادب ښکلاوې بدرنګۍ کړې او شعر ئې داسلامي عقائدو په خلاف استعمالول پیل کړه لکه چې په رزیلو او فاسدو خپرونو کې تر سترګو کیږي نو له همدې امله هنر او ادب یو منبر دمنبرو څخه، یو سنګر دسنګرو څخه او یوه توره دزهرو لړولو تورو څخه داسلام پر ضد قرار ونیوی.

## فکري جګړه

(۶)**بهرنی بورسونه**: هر څومره چې د اسلامي هیوادونو شاګردان په سیکولر مکتبو او مدرسو کې شامیلیږي او د سکولرانو ښوونکو او مقرراتو سره برابر درس وایي او خلګ په غسي محیط او ټولنه ژوند کوي بیا هم دخلګو په زړو کې اسلامي مینه او تقلید که څه هم لږ وي شتون لري نو له همدې امله د سیکولرانو دخلګو منعه کول د اسلام څخه او خپل کرغیړن فکر تپل ګران کار دی خو بیا هم د دوی د پوره هڅو په شتون کې ممکن دی ځکه ټولنې او محیط خامخا په خلګو کې تاثیر کړی دی د خلګو په کړونو او فکرونو کې توپیر پیدا سوی دی د دغه خبرې په نظر کې نیولو سره د سیکولر پلان ښوودونکې داسې پلان جوړ کړی دی چې د مسلمانانو اولادونه وخپل غربي پوهنتونو ته دزده ګړې لپاره جلب کړي تر څو په اسانی سره خپل هدف تر لاسه کړي ځکه که څه هم زموږ د پوهنتون او غربي پوهنتون ترمنځ چندانې توپیر نسته مګر د اخبره د اپاملرنې وړده چې یو شاګرد کله دغرب پوهنتون ته ولاړ سي خامخا خپل کړه وړه او ژوند دخپلې ټولنې څخه پرته دغرب دټولنې سره برابر وي دداسې خلګو سره به ئې شناخت وي چې په فکرونو او مذهب کې به دده دټولنې دخلګو څخه مخالف وي، ددغه کار په کولو سره دښمن کولای سی چې د شاګرد فکر او اخلاق دخپلې خوښې سره سم جوړ کړي یعنې داکار ډیره مرسته ورسره کولای سی. کله چې ئې د شاګرد ظاهري کړه وړه او عادت بدل کړي وروسته بیا ددماغ پریولو او پوره ډول سره ددوی دفکرو منلو کار شروع کوی کله چې ئې داکار وکړی استاذان ئې په دې ډاډه سوي

چې اوس نو زموږ پليتـه او کرغیړنـه مفکوره پکښـې تـپـل سـوی ده او زمـوږ لپاره ښه کار کولای سی نو بیا خپل وطن تـه استوی، داتوماتیکی فشار پـه مټ ئی په خپلو هیوادو کی دقیادت او قانون جوړونی په ځایو کښـی گماری. دوی هم په داسی کارو شروع کوی چی استاذان ئی ځنی ناتوانـه سوی وی، داسلام ارزښتونو په لمنځه وړولو او دسیکولر ودانولو پیل وکړی. داسلامی نړی زیاته برخه شاگردان غرب ته تللی وی او که شرق ته تللی وی دزده کړی په پورتنی ډول راستنیږی، دڅو کسانو پرته چی دا الله ﷻ رحمت باندی سوی وی. دغه کرنلاره اوس هم په پوره زور سره روانـه ده دغـرب او سـیکولر پیغامونـه سرته رسوی مگر مسلمانان ددغـه خطرناك كار څخه یا خو خبر ندی او یا داسی ناتوانه سوی دی چی بله لاره نلری. بلی: مسلمانان د (طٰه حسـین) څخـه څومره توانونـه او تکلیفونـه ولیدل چی دپارس څخـه راستون سو او دوزیر معـارف پـه حیث مقرر سو او دپـوهنی درئس او مـدیر پـه توگـه مقرر سـو نـو نوموړی دخپل منصب څخه په استفاده کولـو دمصر پـه لویـه دانشـگا (الاهر) کی او نورو پوهنځیانو کی دسیکولر داصولولپاره پـه پـوره پپیمانـه کارونـه وکړل بالا خرة وایم کوم کارئی دسیکولر پـه مخالفت وکړی؟ کوم څه ئی ونـه کړل؟ همدا ډول مسلمانانو د (الازهر) دیو شیخ افاعـة الصـهطاوی څـومری مشکلات ولیدل چی دمحمد علی دلوری څخه دفرانسی دعلمی تحقیقاتو پوهنځی ته کاندید سو رفاعة چی کله مصر ته ستون سو دغـرب زده کـړی ئـی تـر لاسـه کـړی وی فکـر ئـی پـه پـوره ډول خپیـث او نـاوړه گـرځیـدلی وو، دده

دراتگ سره جوخت دمصر په اسلامی ارزښتونو او اخلاقو کی نقص پیل سو. نوموړی د فرانسی خط سیر تعقیبوی او خپل سیخلی دین ته ئی ناخوالی واوړی. دده ثیر زیت خلگ وه او سته چی خپل دینی حیثیت ئی په غربی دین کی حل کړی دی او ځان ئی دغربیانو دلاس الهٔ گرځولی ده لکه: (قاسم امین)، (سعد زغلول)، (محمد خلف الله)، (فرج فود) او داسی نور. دغه ډول کسان ترنن ورځی پوری زیات مهم ملتونه په لاس کی لری. او د اسلامی ټولنو ښوونیزی بنسټیزی اداری کنټرولوی. او د اسلامی روڼ آندو، فهھآؤ او علماؤ دبرطرفه کولو او شړولو لپاره هځی کوی.

*******

# دقومی او نژادی تصبات ژوندی کول

## (دقومیت تعریف)

دقومیت ځخه موخه دخپل قوم ویاړ دی دخپل قوم دلوړوالی باور دی پر نوروقومونو او نژادونو باندی دخپل قوم لپاره مشری او قیادت خوښول لکه دالمان دهیلټر دوخت واکمن خلگ چی دائی شعار وو چی المان تر ټولو لوړ دی ددغه کسانو دفکر په لړ کی هټلر یوه وتلی څهره وه چی دالمان دمصالحو په خاطر ئی دنیا برباد کړه. یقیناً اسلام په هغه وخت کی ظهور وکړی چی قومی او نژادی تعصبات اوج ته رسیدلی وه او بشری ټولنه دپاشلو او هلاکت

مرحلی ته رسیدلی وه، دغه دعوت دالله ﷻ په فضل او لورینه، دخدای ﷻ دمیړنیو بندګانو دمخلصانه دعوت په مټ او درسول الله ﷺ دمدبرانه مشری په برکت وکولای سوه چی دعصبیت تور او درانه ځنځیرونه چی دبشریت پښی او لاسونه ټینګ تړلی وه وی شکوی. او یوه اسلامی نمونه ئی راوړه چی بشریت ئی مثال نه وو لیدلی، هغه ټولنه چی دقومی او نژادی په سیند کی لاهو وه لمنځه ولاړه پر ځای ئی یوه داسی ټولنه راغله چی دتوحید پر شمه باندی راټول او دمنځه څخه ئی قومی او نژادی توپیر تللی وو، دوروګلوی او توحید بیرغ ئی په منځ کی ورپیدی، دعزت او ذلت معیار ئی عمل او عقیده سوه. مختلف ملتونه لکه عربی، فارسی، هندی، قبطی، چینائی، رومی او حبشی ټوله په یوه ټوټه دیو ملته په څیر داسلام تر سایوان لاندی راغلل. چی خدای ئی یو دی، کتاب ئی یو دی، پیشوا ئی یو دی او قبله ئی یوه ده. دجهالت دوخت ټول تبعیضاد ئی هیر کړل خپل ټول توان پر عقیده او اسلامی فکرونو باندی متمرکز کړل. هغه عقیده چی ددوی ددوستی او دښمنی بڼه ئی جوړول. زموږ دښمنان په دغه خبره تر مسلمانانو ښه خبری ځکه: (فلیب حیتی) وایی: شك نسته چی اسلام دمسلمانانو ترمنځ مینه او الفت پیداکړی دی. او یوائی ددی اهداف یوالی دی. هغه ډیوه چی دمسلمانانو دهیلو او ارزوګانو دپوره کیدو لاره ځلوی هغه ددوی دمنځ درخی او کینی لیری والی دی. مختلف عناصر او نه رغیدونکی پیښی ئی دصمیمیت په فضا بدلی کړی دی، دعربو په منځ کی ئی یو پاڅیدونکی قوت رامنځته کړی دی. په کال

(۱۹۱۱_م) کې دتنصير يوه غونډه دهند په لکنو کې جوړه سوه په نوموړې غونډه کې (ويترخت) وويل: که څه هم اسلام په وده، ترقي او مدنيت کې ترمونږ پاته دی مگر دلتونو په روغه جوړه او دمشکلاتو په لمنځه وړلو کې تر مونږ وړاندې دی. (جستالوبون) وائي: په اوسني حالت کې تر يوه مليارډ زيات انسانان زيات انسانان مسلمانان دی دجزيرة العرب هيوادونه، مصر، سوريه، برصغير، يولويه برخه دهند، روسيه اوچين همدا ډول دافريق براعظم داسلام دين قبول کړی دی هم دا اسلام دی چې ټول ملتونه ئې دقرآن دقانون لاندې راوستلي دی دژبې يوالي او پيوندونه ئې رامنځته کړی دی په پايله کې ټول حاجيان او زيارت کونکي په يوه ځای کې په مکه مکرمه کې سره يو ځای کيږي ټوله شکيدلي پيوندونه درسول اللهﷺ په اتباع کې ديوې ژبې لاندې پيوند سوی دی او ټوله دعربي اصولو او قواعدو مطابق الزاماً دقرآن کريم تلوت کوی همدا لامل دی چې عربي ژبه په اوسني نړۍ کښې دلوموړې درجې لرونکې ژبه ده همدا ډول په اسلامي ملتو کې دهر نسل او هر نژاد څخه چې وی په خپلو منځو لويه خواخوږي او همکار لري. ددومري لويو قومونو سره يوځای کول داسلام ددين پرته ممکن نه دی. (داهم داسلام په اړه دتاريخ شهادت دی).

# د اسلامی ټولنی د جوړونی اصول او اساسات

ټول هغه اصول چی د اسلام مبین دین وخپلی ټولنی ته ښوودلی دی او ټولنه پر هغه باندی ولاړه ده په لنډ ډول عبارت دی له:

(۱) پر یوه خدایﷻ باندی ایمان لری او د څښتنﷻ په وړاندی عاجزی کول او ټولو اوامرو او نوهیو ته ئی غاړه ایښودل.

(۲) دیووالی پر بنسټ باندی باور لری لکه چی فرمائی:

(**وان کنتم فی ریب من البعث فانا خلقناکم من تراب ثم من نطفة**)

ژباړه: که تاسو د میړنی څخه وروسته په شك کی یاست نو موږ تاسو د خاورو څخه پیداکړی یاست بیا مو د نطفی څخه پیداکړی یاست ... بیا فرمائی:

(**ان خلقناکم من ذکر وانثٰی**)

ژباړه: بیشکه موږ تاسو د نارینه او ښځی څخه پیداکړی یاست.

(۳) پردی باور کوی چی ټول د خدایﷻ بنده گان دی او هر سړی به د خپل عمل مطابق د څښتن تعلٰیﷻ حضور وړاندی کیږی لکه چی فرمائی:

(**کلهم اتیة یوم القیامة فرداً**)

ژباړه: دوی ټوله به په ورځ د قیامت یواځی راځی.

(۴) د خلگو پردرنښت او بی عزتی باندی د تقوٰی لمخی باور لری: لکه چی فرمائی:

(**ان اکرمکم عندالله اتقاکم**)

ژباړه: بيشکه په تاسو کی ددرنښت وړ هغه څوك دی چی په تاسو کی پرهيزګاروی.

# دنژادی تبعيضاتو په نشرولو کی ددښمن رويې

کله چی صليبی جګړی داسلامی ټولنو دبنسټ غورځولو لپاره پيل سوی لومړی يرغل ئی دورورګلوی پر ديوال باندی وو. ځکه دوی پوهيدل چی داسلامی ټولنی دپاشلو او داسلامی امت څخه ديوالی لمنځه وړلو لپاره يوائی لاره کومی تعصبات رامنځته کول دی نو له دی امله دفکری جګړی جنګياليو دقوميت دبی روحه کالبد په ترکيه کی راژوندی کړی ځکه ترکانو چی دخلافت او مشرتابه چاری په لاس کی درلودی او عرب ئی ماتحت وه نو دستی ئی په عربو کی دافکروځوځاوه چی تاسو درسول اللهﷺ عيال ياست رسول اللهﷺ په تاسو کی ليږل سوی دی، داسلام ځلا دلومړی ځل لپاره ستاسو دسيمو څخه ځليدلی ده، ستاسو پلرونو او نيکونو پردی دين قربانی درکړی ده نو ترکان بيا څوك دی چی مشر کوی. داخبره خو ريشتيا وی مګر ددی خبری ترشا يو خطر په کمين کی ناست وو چی داسلام ټول منافع ځنی بربادېدل اصلاً موضوع بله وه، ملك حسين نيکه شريف حسين ددغه قومی تعصب له امله خپل بيلتون او خپلواکی دخلافت څخه علان کړه. همدا ډول دعربی ټولنی څخه داسلامی وحدت دلمنځه وړولو په موخه په مختلفو عنوانو شعارونه دقوم پرستی دژوندی کيدلو لپاره پورته سوه. په مصر کی

فرعونیت، په سریه کی فینقیت او په الجزائر کی بربریت تازه روح واخیستی، دقوم او نژاد پر بنسټ سیاسی خوځښتونه پیل سوه نوی ملتونه تاء سیس سوه خلګ دژبی او تاریخ پر بنسټ یو دبل سره پیوند سوه دین او عقیده ئی دژوند دقاموس څخه وغورځول. دغه ډلی دسیاسی، معنوی، مادی او نظامی ملاتړ څخه برخمنی وی دهمدغی وسیلی په مټ وتوانیدل چی خپلی زیات شمیر ارزوګانی او هیلی پوره کړی. داسلام دیو موټی ټولنی دبربادی او تباهی لپاره، داسلام دمرستی او تعاون لمنځه وړولو لپاره او دنوو احزابو ډلو دقوم او نژاد پر بنسټ دجوړیدو لپاره مهم اهداف هغه ډلی دی چی ضرر رسانه چینجی په څیر داسلام ریښی وهی:

# دهغه ډلو او سازمانونو نمونه چی دښمن تاسیس کړی دی

الف: عربی ټولنه، یادعربی هیوادونو اتحادیه چی دانګلیس پسه مستقیمو پلانونو طرحه شوی ده تر څو دغه اتحادیه پر عربو باندی دبر لاسی لپاره استعمال کړی او مصلحو مسلمانانو حځی دوحدت دبیا راژوندی کیدو لپاره بی ګټی کړی. ددوی دګټو زانګو ده.

ب: دبعث سیوسالستی ګوند چی په عربو کی په (۱۹۴۷ـم) کال کی درخه لرونکی (میشل عفلق) لخوا په عراق او سوریه کی جوړ سو.

ج: دقحطائی سازمان چی په (۱۹۰۹_م) کال کی ئی ظهور وکړی دغه سازمان دبنسټ ایښودونکو شخه مشهوره ثهره د(خلیل حماده) شخه عبارت ده.
داسی ډیری ډلی او سازمانونه ددښمن لخوا جوړ سوه چی قومیت پرستی او نژاد پرستی ته ئی وده ورکوله.
د: ددغه ډلو په څنگ کی غربیانو ځنی نور انجمنونه دپوهاوی په بهانه جوړه کړی وه چی ددوی دمشکلاتو دحل په خاطر ئی پانگو ته کوله. ددغه موضوع دثبوت لپاره دیوه یهودی لس میلونه ډالر ورکول دموزیم دجوړیدو لپاره ښه شاهد دی د (جب) په نامه یو مشرق وائی: دمسلمانانو دغربیانو گرځولو لپاره پر دوی باندی دصلیب اثر اچولو لپاره او ددین څخه دلیری کولو لپاره مهم شئ په اسلامی هیوادو کی دمکاتبو رشد دی چی تر اوسه هم مسلمانانو پاملرنه کی قرار لری. داډول کارونه یعنی دخپلی خوښی ښوونځیانی جوړول په مصر، ترکیه، اندونیزیا او ایران کی دپاملرنی وړ دی. دغه موضوع ددښمنی دشعور دپیاوړی کولو لپاره داروپائی پر برابر ځانگړی ځای لری او په راتلونکی کی به دقوم پرستی او نژاد پرستی لپاره پیاړی رول ولری. په هم دا ترتیب ددښمنانانو غوښتنی موجودی سوی او دمسلمانانو په منځ کی ئی دنفاق او روشیندی او مسلمانان بچی ئی سره بیل کړه.

# دقانون جوړونی او پلان جوړونی پر مرکزونو باندی پرلاسی

دایو څرگند حقیقت دی چی هر مسلمان په دی باور دی چی کامل قدرت او واکمنی یوازی اللهﷻ لره ده که دهر مسلمان څخه پوښتنه وسی چی کامله واکمنی چالره ده؟ په څرگنده به جواب ورکړی چی خدایﷻ لره ده. مسلمانان دتاریخ په اوږدوکی په دی باوردی او دخپلی عقیدی بنسټ بولی او دخپل دولت دشاستون او دایمان دلیل ئی بولی څښتن تعلیٰﷻ فرمائی:

**فلاوربک لایؤمنون حتٰی یحکمون فیما شجر بینهم ثم لا یجدو فی انفسهم حرجاً مِمّا قضیت ویسلمو اتسلیما.**

**ژباړه:** پس نو قسم ستا په رب چی دوی به مؤمنان نسی (تر هغه وخته) چی ددوی په منځ کی اختلاف پیښ شی او ته ئی په منځ کی فیصله وکی ددوی په زړو کی تنگی نسی پیدا چی تا حکم ورکړی دی او په غاړه ایښودلو ئی قبول کړی. مسلمانان په دی باور دی چی دشریعت پرته پریکړه کول ارتداد او نفاق دی او دمنافق نښه ده. اللهﷻ فرمائی:

**واذاقیل لهم تعلواالی ماانزل الله والی الرسول رایت المنافقین یصدون عنک صدوداً.**

**ژباړه:** کله چی وویل سی اللهﷻ نازل کړل سوی (امرته) راسی ته به ویینی چی منافقان به ستا څخه اعراض کوی په اعراض کولو سره. کله چی فکری جگړی

اسلامي هيوادونه تر ير غل لاندي راوستل. دفكري جگړي متوليانو دمسلمانانو ټينگښت پر شريعت باندي او دنورو قوانينو ته نظر نه کول ملاحظه کړي وه او پردي ئي باور وو چي تر څو مسلمانان د اسلام دشريعت څخه نوي ليري سوي او شريعت ته ئي دپاى ټيکى نه وي ايښى ددوى بريالیتوب په خپلو شومو اهدافو کي شوني نه دى، پدى هم پوه وه چي پردى کار باندى برلاس تر هغه وخته نسى راتلاى چي دقانون جوړوني او پلان جوړوني پر مرکزونو باندى تسلط نوى راغلى نو لدى امله ئى پر دغه ځايو باندى دبرلاسى لپاره ئى پوره هڅي پيل کړي ددغه هڅو څخه دشريعت لمنځه وړل يوازى هدف نه وو بلکى هدف ئى داوو چي دژوند ټولي چاري دفکري جگړي سره برابري کړي په همدى ترتيب ئى اسلامي شريعت، اسلامي اقتصاد ، اسلامي ښوونه او اسلامي ټولنه ئى يو په بل پسى يووړل ديني علومو چي فقهآؤ او علماؤ په گران قيمت دکتاب الله او سنت رسول الله په رڼا کي لاسته راړوى وه او دژوند يو ښه قانون پکښى نغښتى يوائى دمراجعينو لپاره په کتابو کښى بند پاته سوه او عمل ئى دقانون لپاره نه وو. ديوه ميراث په ډول پاته سوه او دپيرى او ديب ددفعى دشئ په څير په الماري او کتابتونو کي ساتل کيده. کله چي انسان دحقوقو، اتصاد، تجارت او تعليم او تربيى پوهنځى ووايي نو سړى ته معلوميږى چي ددښمن بى روحه درس په بد پوښ کي څومره بى خونده دى چي خلگ نفرت ځنى کوى او دپوهانو په وړاندى ئى

دیو داسی تاریخی پدیدی په خیر وړاندی کوی چی په اوسنی ژوند کی دتطبیق وړ نده.

# دتعلیم او تربیې په مرکزونو کی نفوذ

په تیر بحث کی مو په ټولنه کی دتعلیم او تربیې دشاوخوا اهمیت بیان کړی اووه مو ویل چی تعلیم تربیه دهری ټولنی دمپلا دتیر په خیر ده او هری ټولنی اوسنی او راتلونکی حالت دپوهی پر بنسټ ولاړ دی. ټولی بشری ټولنی دپوهنیز مرکزونو پیاوړی کیدو لپاره هڅی کوی. مسلمانان ددینی ښوونو پر بنسټ دعلومو په زدکړه او هغه کتې چی پری مرتبی دی تر نورو وړاندی دی کله چی اسلامی هیوادونه دصلیبی جګړو تر یرغل لاندی راغلل. دصلیبانو مهم هدف دمسلمانانو پر تعیمی مرکزونو باندی تلسط وو تر څو دوی وکولای سی چی دخپلو عسکرو دایستلو وروسته خپله بقا وساتی داددی لپاره چی پر ملتونو باندی خپل پوره سیوری وغوړوی او نوی نسل په زده کړه کی وخپل سیستم ته واړوی او اسلامی ملتونه دتعلیمی تیراژ، دښوونکو په انتخاب، دتدریس په ژبه کی او ددرس په کتابو کی ددوی تقلید وکړی. دایو ثرګند حقیقت دی چی په نړی کی هیڅ داسی اسلامی هیواد نسته چی دمعارف وزارت دی ئی امریکائی مشاورین نه لری. دردونکی خبره داده کله، کله ددغه مشاورین دیهودیانو او سهونیزم لمنځو څخه ټاکل کیږی دهغه توافق له مخی چی دکفری هیوادو او اسلامی هیوادو دمعارف دزیرانو تر

منځ سوی دی په دی ترتیب دی چی امریکائی ښوونکی به په اسلامی هیوادو کی په پوهنځیانو او مدرسو کښی دښوونکی په صفت کار کو هغه کفرٰ کتابونه چٰ دغه ښوونکی ئی دځان سره لری په ځینو استشنائی وختو کی په مربوطه کار وکی ددخالت اجازه ورکړل سوی وه. داخبره دابو دمخ کرښه وه ددوی رول وطرفته ته غورځیدلی وو دعقیدی دمخالفو خبرو کولو پر مهال هیچاته اجازه نسته چی اعتراض وکړی. دغرب استخدام سوی ښوونکی دخپلی ژبی پرته په بله ژبه درس نه ورکوی داخپله یو داسی کار دی چی خلگ دقرآن دژبی څخه او دخپل تعلیم او تربیی څخه لیری کوی. له همدی امله مسلمانان یو مهم عامل دوحدت دعواملو څخه دلاسه ورکوی چی دقرآن او حدیثو درسول اللهﷺ ژبه ده. دد‌ښمن نهایی هدف دادی چی دخلگو عقلونه پریولی او دیو نوی رنگ دغربی فکرونو ورکړی، دفکری جگړی اهداف تر لاسه کړی ددوی دغه نفوذ پر تعلیمی مرکزونو باندی په ډیرو ډولونو باندی چی له جملی څخه ئی:

# ددرسی ژبی په حیث د پردی ژبه پیل

داخبره په ټوله اسلامی هیوادوکی عامه سوی ده چی په پوهنتونواو پوهنځیانو کی رسمی ژبه انگلیس، فرانسوی او یا المانی دتدریس لپاره رسمی ژبه ده. په اسلامی نړی کی یوازنی هیواد چی ټول زده کړی ئی عربی دی لکه طب، انجنری، اقتصاد، تاریخ او جغرافیه او ادبیات دسوریی هیواد

دی. وروسته په ځینو هیوادو کی هم دسوریی په څیر گامونه اخیستل سوی دی لکه ایران، الجزائر، تونس، لیبیا او داسی نور خو ډیر لږ کار دی. په داسی حال کی چی داکار دپایلو سره راسخ عزم غواړی او زیاتی هڅی او زیارونه غواړی.

## داجتماعی او بشری علومو په پروگرامو کی تغیر

دښمنانو په دی موخه چی دفکری جگړی اهداف ئی دښوونیزی پروسی سره برابر سی دپاملرنی وړ تغیرات ئی په علومو کښی راوستل دی په ځانگړی ډول په بشری او اجتماعی علومو کښی چی دمثال په ډول ئی څو بیلگی په لاندی کرښو کی بیانوم:

**الف: تاریخی اود درس طریقی ئی:** کله چی دمتعلمینو ته دتاریخ ترس ویل کیږی قصداً روعناداً به ئی دغه مضمون نیگړی کاوه او حقایق به ئی پټول داسی ټکی ئی پکښی ښودل چی اسلامی ابتخارات به ئی نیمگړی کول او اسلامی ځلا به ئی ټیټ رنگه کول پر ځای به ئی غربی تاریخ ایښودی چی ددې څرگندونه به ئی کول چی دژوند حماسه پیداکونکی دوی دی دمثال په ډول: د (ناپلئون) بی رحمه او انسانی ضد یرغل چی په (۱۷۹۸_م) کال کی پیښ سوه پر حقیقت به ئی پرده اچول او په ښکاره به ئی شاگردانو ته دافکر ورکاوه چی گویا دایرغل دمصر لپاره یوه فتحه ده او حال داچی داحمله

داسلام دلمنځه وړولو او داسلامی نړی دعلم دزانګو دلمنځه وړولو او دعلماؤ دقبلی له منځه وړولو لپاره وه.

**ب: دتعلیمی پلان څخه دځینو حدیثونو ایسته کول:** تر ټولو خطرناکه حدیث هغه غیر نظامی حمله وه چی امریکا دټولو هغه نصوصو دتعلیمی پلان څخه له منځه وړلو ته ملاتړل چی دیهودیت او عیسائیت ضدوه. مصر لومړی هغه هیواد وو چی ددغه غوښتنی جواب ته ئی لبیك وو ایه په ځانګړی ډول د (کمپ دیوید) دمعاهدی تر امضا وروسته ئی کم همته اقدام وکړی، داسی نور هیوادونه هم چی په دی لاه کی ئی دیهودی اهدافو شتون لپاره بی وقفی او پر له پسی ګامونه واخیستل.

ج: دجغرافیې مضمون له لاری داسلامی هیوادو په منځ کی دبیلتون کرښی غځول. هغه مضمون چی دښمن په زیاته کته دی دجغرافیې مضمون چی دصلیبی خدمتونو په سرته رسولو کی ښه کار کوی. دغه مضمون په داسی ماهرانه ډول تدریس کیږی چی دمسلمانانو تر منځ دجدائی او بیلتون کرښی ښه پیاوړی کیږی. په دی کی هیڅ شك نسته چی داسلامی هیوادو په منځ کی دسرحدو کرښی دصلیبې دښمنانو یوه توطئه او دسیسه ده موږ ته په کار ده چی ددغه کار پرځای شاګردان پوه کړو چی داسلامی هیوادونو تر منځ سرحدونه معلومول ددښمنانو کار دی دیو جوړی سوی او واردسوی کار دیچی پر موږ تپل سوی دی ځکه داکار په اسلام کی هیڅ اثر نه لری بلکی داکار په اسلام کی مردود دی اسلام هیڅ مرز او سرحد داسلامی هیوادو په

منځ کې سرحدونه پيژني د اسلام له آنده سرحد ايمان او عقيده ده. د اسلام له نظره که يوه ټوټه مځکه په شرق يا غرب کې وي د ټولو مسلمانانو شريکه ده.دد ښمن هر ډول يرغل پر هر ځاى باندى د دمسلما نانو پر ټوله علم اسلام باندى ير غل دى اوپر ټو لو مسلما نانويي دفاع وا جب ده خوله بده مرغه موږ دغه مضمون ديو حقيقت په څير در رسوو چې گويا د اسلامي هيوادو په منځ کي او دخپلي خاوري تماميت د اسلامي مصالحو پرته په نظر کې نيسو که څه هم سرحد دکفارو سره وى او که دمسلمانانو سره داده د اسلام توټه کولو فکر دى او موږ دى فکر ته قوت وربخښو. دافکر په پوره ډول باطل دى الله ﷻ ددى شر څخه مسلمانان ساتلي دى خوى دوى ورځغلى. د اسى ډير مثالونه سته چې دا وړوکى رساله ئى دټولو دبيان توان نه لري نو لدى امله په دغه لږ بسنه کوم.

# دفرهنگی او تعلیمی مؤسسو تاسیس

غربيانو دخپلو گټو لاس ته راوړولو لپاره دښوونى او روزنى دپوسى څخه دصلبيت دکتې لپاره فرهنگى او تعليمي مؤسيس تاءسيس کړى وى. چې تر ټولو خطرناکى ده (يونسکو) سازمان دى دا سازمان دملل متحد دښاخو څخه يو ښاخ دى چې د اسلام او مسلمانانو سره ئى دښمنى مشهوره ده او دانکار وړ نده. کله چې ددى سازمان آمير دسنگال هيواد يو مسلمان تن د (مصطفٰى ابو) په نامه سو ده لټه وکړه چې عمومى تعادل رامنځته کړى او د اسلام او مسلمانانو مصالح بشپړ کړى نو سمدلاسه ئى ددندى څخه ايسته کړى پر

ځای ئی یو صلیبی کس د اسپانیا هیواد څخه وګماری د دغه سازمان د فعالیتو څخه یو دادی چی په درس ځایو کی خپل پلنونه تپی او پر ټولو ښوونیزو مرکزو باندی خپل فکرونه طپی او هره درسګاه چی د دوی اصول نه ومنی دوی ئی په رسمیت نه پیژنی. له بده مرغه یو سازمان چی په ښکاره د اسلام نوم باندی یادیږی او د اسلامی کانفرانس د شازمان یو ښاخ هم ګڼل کیږی یو بل سازمان دی چی دیونسکو په وړاندی ئی سقوط کړی دی او نه دی توانیدلی چی خپل پلان جوړ کړی او د مسلمانانو فکر او هیلی پوره کړی.

# د ټولنیزو رابطو او مطبوعاتو پر وسائلو باندی برلاسی

د سیاست خلګ، استراژیکی مطالعی او مطبوعاتی علانونه سره د بیلو ، بیلو وسائلو په هر دولت کی دیوه څلرم قوت په بڼه شتون لری یعنی د مقننی، اجرائی او قضائی قوی څخه علاوه د اعلمیې قوه هم شتون لری. ځینی په دی آند دی چی د اعلامیی (مطبوعاتو) قوه د هغه نورو درو قوو په پرتله زیاته زوروره او مهم ده. ځینو بیا تردی هم زیاتوب کړی دی او وو ایی: د اعلامیی قوه تر ټولو لنډه او زوروره قوه ده هر څوك چی دغه قوه په خپل کنټرول کی راولی یقینی خبره ده چی هغه نوری دری قوی به ئی هم په کنټرول کی وی څنګه چی ئی خوښه سی په هغه ډول به خپل اهداف سره ته رسوی. له دی امله د دغه قوی تاء ثیر اونفوذ د خلګو په منځ کی څرګند سوی دی. او غربیانو هم

په پوره زور سره دنوو وتلو مطبوعاتو په مت خپل فکرونه او نظریات په دریمه نړۍ کې تپلي دي. او اسلامي ډیوه ئیې تاریکه کړې ده. دخپلو مطبوعات په لړ کې ئې دلیدلو، اوریدلو او لوستلو خپروني بابرې کړې دي تر څو اسلامي پچیان د اسلام څخه لیرې کړي او دخپلو نظریاتو څخه ئې عیار کړي. کینه لرونکي غربیانو یوځې پر دې بسنه نده کړې چې خپلو هیوادو څخه اسلام لیرې کړي بلکې داکار ئې و اسلامي هیوادو ده هم رانقل کړې دي. بلې: دمطبوعاتو مسائل په ذهنونو او فکرونو کې دمدرسو او ښوونځیانو په پرتله زیات مؤثر او خطرناك دي. ځکه مدرسي او ښوونځیانو ته یوائې شاگردان، نوي ځوانان او متعلمین ورځي یوائې پردوي اثر کوي او مطبوعات یو داسې آله دي چې دتلویزون، کتاب او ورځپاڼې، سینم، رادیو او مجلو څخه جوړه ده ددغه آلې څخه ټولې ټولنې یعنې لوی او کوچني، نر او ښځه، ځوان او سپین ږیرې، شتمن او نادار، پوه او ناپوه ټوله تر تاء ثیر لاندې راځي. دغه وسائل دخپل ارزښت سره چې تر خپل لاس لاندې راولي گویا دټولې ټولنې فکرونه ئې بیمه کړل. کولای سي چې دجامعې لپاره دیوې مفکورې دفاع وکړې او یا بله مفکوره وغندي پرته ددې چې حق او باطل ئې په نظر کې ونیسي دمطبوعاتو دپورتني اهمیت په نظر کې نیولو سره صلیبیانو او صهونیستانو دنشر او اعلان ټول وسائل مستخر کړي دي او دخپلو شومو اهدافو دپوره کولو لپاره کته ځنې اخلي سره ددې چې ټوله خلگ یعنې ځوانان او سپین ږیرې، نر او ښځې، لویان او کوچنیان ئې دمطبوعاتو یعنې سینما، تلویزون،

رادیو څخه متاءثره سوی دی دنوموړو کسانو په اخلاقو او رویو کی هم توپیر پیدا سوی دی. سینما او تلویزن په رزلو او بی حیا خپرونو سره خلګ ګناه ته تشویق کړی دی. بدکارونه ئی قهرمانی معرفی کړی دی او ددی بدکارو کړونکی ئی قهرمانان معرفی کړی دی. په مصر او نورو اسلامی ښارو کی مسلمانانو دهنر مندانو، نشاکونکو، تلویزنونو، سینما او تیاترو دفتنه اچونکو او خرابونکو اعمالو څخه په شکایت دی ځکه ځوانان دفساد دناوړه اخلاقو ولوری ته بیایی چی داسلام، دود او عزت څخه ډیر لیری دی، کوم څه چی دتلویزون او سینما یا دنورو مطبوعاتو پر مخ ښکاره کیږی دحیا او فت پرته دناوړو فکرونو په ملنه داسی څه خپروی چی منکر ته نیك کار وائی او نیك کار ته منکر وائی. داسی ډیری نوری مسائل داسلامی هیوادو په مطبوعاتو کی تر سترګو کیږی دا ټوله دفکری جګړی څرګندونه کوی او دصلبیت او یهودیت داهدافو لپاره مسخر سوی دی په تاء سف سره باید ووایم چی داسلامی عقیدی ریښتنی پیروان په ډیرو ځایو کښی نه ترسترګو کیږی او نه هیڅ ځای داسی سپیڅلی څوك لرو چی دمطبوعاتو لپاره دی داسلام دپوره اصولو په نظر کی نیولو سره یو څوك مؤظف کړی. بلکی سمدلاسه وینو چی مسؤلین، مدیران او حتی جوړونکی ددغه وسائلو بی دینه سیکولران دی په ټولو کارو کی ددښمن داستعمار لاس دی. داسی مطبوعات چی داسلامی فکرونو ممثل وی او دخپل اسلامی ټولنی دمصالحو لپاره هڅی کوی لومړی خو شتون نه لری کوی نو ډیر کمزوری او

ظعیف دی. دپیاوړی کولو او پرمختګ هیله ئی لرم اللهﷻ دی ئی مرسته وکړی.

# داسلامی پاخون دمشرانو ترورول

دغه شیطانی او ناځوانه طریقه دقدامت له پلوه ډیره پخوانی سابقه لری. چی دهری طبقی دمشرانو لخوا دخدایې دعوت کونکو پر ضد باندی جوړیږی. هیڅ پیغمبر دپیغمبرانو څخه ندی پاته سوی چی ظالمانو دهغه ترورولو او بدنامه کولو لپاره په ټولو امکاناتو هڅی نوی کړی. دهر پیغمبر پر ضد به داسی خلګ وه چی خلګ به ئی ځنی متنعر کول او په بدو صفتو به ئی معرفی کاوه او ډیر بد تورونه به ئی پر تړل اللهﷻ ددی بد سلوك داشاره کولو په موخه فرمائی:

**کذالک ما اتی الذین من قبلهم من رسول الا قالو اساحر او مجنون.**

ژباړه: داسی خلګ تر دوی مخکی ندی راغلی دهیڅ پیغمبر مګر دوی به ورته ویل دا ساحر دی یا به ئی ورته ویل دا لیونی دی. یقینی خبره ده چی فکری جګړی داسلام پر ضد پیل سوی ده او زیات تاء ثیر لرونکی رویه چی دوی غوره کړی ده داسلامی پاخون په وړاندی ددینی، اجتمائی او مخورو مشرانو ترورول دی او داسلامی پاخون تخریبول دی کله چی دښمنان ولیدل چی داسلامی ارزښتونو دساتلو او دخپل اسلامی ملت دمقدساتو ددفاع لپاره اسلامی علما او مشران دژوند تر وروستی سلګی پوری ولاړ دی. نو له

دی امله ئی دخلگو څخه ددوی دلیری کول لپاره ئی ددوی دشخصیت دبدنامه کولو لپاره لاس په کار سول او دځانه ئی پر دوی باندی درواغ پیل کړه. تر اوسه پوری دا سلامی علماؤ او اسلامی تحریك دبدنامه کولو لپاره سیکولران هغه درواغ تکراروی. چی دعلماء دامریکا کوډاگیان دی او دودی، ترقی او ازادی مخه نیسی ..... !!! لکه پر (سید قطب شهید) باندی تورونه تړل چی نوموړی دا اللهﷻ دنومونو او صفتونو څخه منکر دی او حال دا چی دابیخی درواغ وه او نوموړی عالم دخدایﷻ دنومونو او صفتونو څخه هیڅ منکر نوو بلکی یو مخور پر دین مین عالم وو ددوی دا توردعنکبوت (جولا) دکور په څیر دی اونوموړی ددی تور څخه دا سی پاك دی لکه چی دیوسف ؑ دوینو څخه مبری وو هر څوك چی دسید قطب کتابونه مطالعه کړی ددی خبری بطلان به ډیر ښه ورته ښکاره سی. یوبل نیژدی او ښکاره مثال چی پر ویلو ئی بسنه کوم شهید عبدالله عزام دی چی ټوله عمر ئی په ټوله مال او اولاد سره دا اللهﷻ په لاه کی جهاد کولو ته او پر مځکه باندی دقرآنی شریعت دپلی کولو لپاره وقف کړی وه دغه زما دده په وړاندی گمان دی چی دی په تمامه معنٰی ریښتنی دی او که دی هم ریښتنی نه سی نو هیڅ څوك به دخدایﷻ په دربار کی تزکیه ترلاسه نه کړی. مگر دی ټولو سره، سره بیا هم اللهﷻ دی پرده رحمت وکړی تهمت او تور څخه نه دی خلاص او ویل کیږی چی ښاغلی عزام دطاغوت په خدمت کی قرار لری دجهاد او مجاهدینو په سلاح کارونه کوی دشهدت تر وخته پوری نه وو خلاص، کله چی دشهید سو نو دده مقام،

اخلاص او ریښتنی جهاد خلګو ته ښکاره سو، ځکه ددښمن تاوان دیوه لږ تاوان پرته د ته نه دی رسیدلی داسی لوړه درجه ریښتنی بنده ګان تر لاسه کوی. په همدی ترتیب هر ځای هر چیری مخلصین او علما بدنامه کیږی. کله چی دغربیان دغه شیطانی رویه دناکامی سره مخ سوه نو دستی ئی دداسی مشرانو او علماؤ په نیولو، بندیانولو او وژولو پیل وکړی لکه شیخ محمد یاسین دحماس ګوند رهبر، نجم الدین اربکان او داسی نور په سلهاو وشران او علما نیول سوی دی. همدا ډول امام حسین البنآ، عبدالله عزام، استاد نیازی. استاذ احمدزی. انجنر حبیب الرحمان، ډاګټر عمر، ډاکټر صحبی الصالح او داسلامی پاڅون ټوله مشران په یوه ډول نه په یو ډول شهیدان سوی دی. دشك پرته په اوسنی حالت کی اسلامی قیادت په ننبه سوی دی. او اسلامی ملت دحیرانتیا او تذلذل په شیله کی بند پاته دی هیڅوك نسی پیداکولای چی دفاع ئی وکړی ددښمنانان دومری دیر دی نه بوهیږی چی دچا دفاع وکړی، ددوی دین ورروښانه کړی، ددوی غصب سوی حقوق دی ورواخلی، ډیری بی پناه یتیمان ودښمن ته ناری وهی، په خپل دین ناخبره پاتیږی، مجاهدین چی دحق په لاره کی زیار او ددنیا او اخرت دنیکمرغی لاره لټوی بدنامیږی. په داسی صورت کی چی خدای مکړه ددښمنانو لخوا ئی عملی کارونه بند سی. دشك پرته دحقایقو پر مخ پرده غوړیدلی ده. اسلامی نښی او معلم خاموشه شوی دی اسلامی قیادت دناپوهانو په لاس کی اخیستی دی، په هره موضوع کی دعلم پرته فتوٰی ورکوی چی هم خپله ځان

گمراه کړی او هم نور گمراهان کړی لکه چې داموضوع په حدیث کی درسول اللهﷺ بیان سوی ده چې فرمائی:

**ان الله لا یقبعض العلم انتزاعاً ینتزعه من العبادولکن یقبض العلم یقبض العلماء حتٰی اذلم یبقِ عالماً اتخذالناس رؤساً جهالاً فسئلو افا فتوا بغیر علم فضلّوا وَ اَضلوا.**

ژباړه: بیشکه اللهﷻ دبنده گانو له منحه ځخه علم نه وړی چې ددوی ځخه دی علم بوزی مگر علما علم بیایی ترداسی بریده چې عالم به پاته نسی خلگ به ناپوهان امیران کړی او پوښتنی به ئی نوروی به فتوا ورکوی دپوهی پرته ځان به هم گمراه کوی نور به هم گمراه کوی. دیادونی وړ ده چې دښمنان هر وخت مختلفی دسیسی داسلام لمنحه وړولو لپاره جوړوی مگر کار به ئی جوړ نسی ځکه اللهﷻ فرمائی:

**انّا نحن نزلنا الذکر وانّا له لحافظون.**

ژباړه: پیشکه موږ قرآن نازل کړی دی او موږ ئی خامخا ساتونکی یو. یوه نمونه دخدایې ساتنه کوی لوی میړنی خلگ دی چې دقرآن عاملان او ساتونکی دی لکه چې په حدیث کی راغلی دی: ان الله یبعث لهذه الامة علی راس کل ماء ة سنة من یجد دلهادینها. ژباړه: بیشکه اللهﷻ ددی امت لپاره دهرو سلو کالو پر سر یو داسی ځوك پیداکوی چې دین ورنوی کړی. په بل ځای کی فرمائی:

**یحمل هٰذاالعلم من کل خلف عدو له ینفون عنه تحریف الغالبین وانتحال المبطلین وتاء ویل الجاهلین.**

## فکری جگړه

**ژباړه:** (په هر راتلونکي نسل کې) به يو ځوك وي چې دغه علم (کتاب او سنت) به وړي تر دښمن ورسته دتيري کونکي تحريف (لاس وهنه)، دباطلو خلگو درواغ تړل او دناپوهو خلگو تاء ويل به لمنځه وړي.

# دريښتني قيادت پر ځای بل قيادت جوړول

دا بحث په حقيقت کې دتير بحث نتيجه او پايلي دي يعني کله چې دښمنانو دريښتني قيادت قائدين يا بدنام کړل او يائي ترور کړل او دخلگو په وړاندی ئي بدنام کړل نو دوی سمدلاسه يو بل ناوړه او جعلي قيادت منځته راوړی. چې په اسلامي هيوادوکې خپل ماء موريت په بهير کې غربي مفکوره خپروی او دغربيانو ملاتړ او ستاينه په غاړه اخلي او خلگ دغربيانو وخواته تشويقوی. ددغه قيادت جوړوني پرژه چې دسياست، اقتصاد، فرهنگ او تربيت لپاره ئي پورته کوی کله ئي په غربي پوهنځيانو کې ترسره کوی لکه امريکا، فرانسه، برتانيا، المان او داسی نور صليبي هيوادونه او کله ئي په محلي پوهنځيانو کې ترسره کوی. چې دغرب لخوا تاء سيس سوی وی. او دکار لپاره داسلامي هيوادو تخريب کاره خلگ گماری. هيڅ فرق نه لری چې دغه مصنوعي قيادت په محلي شکله په اسلامي هيوادو کې جوړ سی او که په خارج په کفري هيواد کې جوړ سی. ځکه دوی چې کوم مصنوعي قيادت جوړ وی دقائد، معلم، ژورناليست، ديوفن متخصص او يا دنظامي چارودمتخصص په نامه جوړوی خپل هيواد ته استوی دسياست دنافذيدو

ټولې ستونزې پر خپله غاړه اخلي دخپلو غربي بادارانو او استاذانو دفکرونو دخپراوي لپاره کار کوي او دهغو دفکرونو څخه دفاع کوي. داسې ډېر قیادتونه سته چې شك او ترد دلمنځه وړي. لکه (طٰه حسین) چې غربیانو موتی لقبونه ورکړي دي نوموړي دغربي او سیکولر فکرونو دخپرولو لپاره دتراش په څیر کار کاوه. او ده ته ئې دمکافاتو په ډلو په دولت کې لوړې چوکی ورکړي دي لکه دمعارف وزارت دادبیاتو دپوهنځی مدیریت او داسې چې داسلام دثوابتو څخه دا انکار او دغربي مفکورو دخپرولو لپاره په مصر او نورو ځایو کی په اخلاص کار کاوه یوه ډله خلګ چې په اسلامی حقیقت نه پوهیده دده دعوت او غولیده او دده دعوت ئی دتمدن دویاړ په نامه قبول کړی عاجبه خو لاداده چې تر نن ورځی پوری نوموړی ځینی مریدان او ملاتړی لري. په مصر او ځینو نورو عربی هیوادو کی دومره کلو په تیریدو سره بیاهم دده زاړه آثارو او کتابو دچاپیدو لپاره اقدامات سوی دی. په دی ترتیب یوه ډله خلګ دغربي مفکورو دتعقیب په موخه په پاکستان کی واك ته رسیدلی دی. ترکی، امین، نجیب او کارمل دروسانو جوړسوی خلګ وه چې دافغانی مات عقیدی لمنځه وړولو لپاره په افغانستان کی یو په بل پسی واك ته رسیدلی دی. (میشل عفلق) یوازنی کس وو چې دغربیانو لخوا جوړسوی وودبعث دګوند په نامه ئی دغربیانو دنظریاتو بیانولو لپاره په سوریه او عراق کی استخدام سوی وو. همدا ډول جمال عبدالناصر دغربیانو ګوډاګی وو چې په مصر او عربی هیوادو کی ئی ددښمنی سیاست پلی کړی. نجیب

محفوظ یو بل تن دی چی دناوړه ادبیاتو په مټ ئی داسلام ضد فکرو ته وده ورکړی ده. داسی ډیر کسان سته چی دغربیانولخوا متاء ثیره سوی دی او دهغوی لپاره کار کوی، په ډیر کم پیمانه به داسی څوك پیداکیږی چی په غرب کی ئی زده کړی کړی وی او یا ئی دغرب په محلی پوهنځیانو کی زده کړی وی مګر دهغوی څخه دی نه وی متاء ثره سوی. لکه: سید قطب او محمدعبدالله رحمت الله علیها. او داسی نور لوړ شخصیتونه چی دالله ﷻ په لطف سره نه یوائی چی دهغوی دفکرو څخه نه دی متاء ثره سوی بلکی خپل رینښتنی عقیدی او خپل اسلامی ته ئی رغنده خدمتونه کړی دی.

# پر اجتمائی ژوند باندی جګړه او دښځی دازادی پر قضیی باندی ترکیز

حقیقت دادی چی داسلامی ټولنی توپیر دنورو څخه په اخلاقو، عاداتو، عقید او باالاخرة په وګړیز او ټولنیزو رابطو کی دی. الٰهی دښمنان چی داسلام او خصوصاً دمسلمانانو سره کینه او رخه لری او دمسلمانانو پر خصوصیاتو او عقیدو باندی جګړه کوی نو دوی دمسلمانانو سلوك، رویو او اخلاقو بدلون ته په سرلیك کی ځای ورکړی دی. کله چی دوی ددی جګړی داوربولو اراده وکړه نو پیل کی ئی هغه سلوك، اخلاق او اعداتو ته تغیر ورکړی چی داسلام دسپیڅلی دین څخه چڼل سوی وه، په ډیره چټکی سره پټمنو عادتونو او تقلیدونه دعفت سره مل وه. غربیانو دناوړه اخلاقو وواکمنی ته ئی ځای

خالي کړي. برابره خبره دی چی دغه حاکمیت په فکر کی وی، په جامه او لباس کی وی او په بل ټولنیز عادت کی وی. لکه دواده کولو دود، په ملی رابط، تفریحی کارونه لکه ورزش او داسی نور. دوی غواړی چی دمینی موضوع په پوره ډول دغربیانو په څیر کړی یعنی باید یو ځوان اجازه ولری چی دیوی پیغلی سره مینه وکړی دمینی په جریان کی هر ځای او هر وخت چی ددوی زړه سی کولای سی چی خلوت سره وکړی. او پر یوه بستره بیده اوپه ورځو او میاشتو دموانعو پرته دتفریح په موخه سیاحت وکړی. دواده او نکاه مراسم چی په دین کی دانسانی پت او احترام سره برابر دی دوی غوښتل چی دغربی دود سره ئی برابر کړی او کورنی یو دبل سره لیری کړی نوربه نو دقرابت، پلاروالی، خسروالی، ورورولی او زوموالی احترام به دژوند په قاموس کی نه وی. همدا ډول دورزش په ډگر کی چی داسلام له نظره دقوت او دمومنانو په منځ کی ددوستی وسیله ده او دقوت دپیداکولو په صورت کی دالله ﷻ رضا او محبت دلکه چی رسول الله ﷺ فرمائی:

**المؤمن القوی خیر واجب الی الله من المؤمن الضعیف وفی کله خیر** رواه مسلم.

**ژباړه:** قوت من مؤمن خیر او محبوب دالله ﷻ په وړاندی دکمزوری اوناتوانه مؤمن او خیر په دواړو کی سته. نو باید دمؤمن دورزش باید هدف دمؤمنانو په منځ کی دوستی او مینه وی. خو غربیان ددغه کار په اوړدو کی ودغه تگ لاری ته تغیر ورکوی او ورزش یوائی دمسلمانانو لپاره دوخت ضائع کیدل وگرځوی او دبداخلاقی او فساد وسیله ئی وگرځوی دوی غواړی چی ددی

لاري دمسلمانانو لاس او پښې وتړي او اسلام چپه کړي. له بده مرغه ددوی دغه هدف تر ډېره بريده رسيدلی دی ډېر ځوانان، سپين ږيري او ښځې دورزش له لاې په بداخلاقي اخته سوي دي او اسلامي اخلاق ئې له لاسه ورکړي دي. په ډيرو هيوادو کې دورزش دکميټې والي لګښت دتعليمي او صنايعو دبودجې څخه ورکول کيږي آن تر دې چې دودې په موخه ئې مسلحانه پلانونه هم ورته جوړ کړي دي. او يو ورزش کاره دحديثو او تفسير تر ښوونکې او تر يو مجاهد چې دالله ﷻ په لاره کښې جهاد کوي زيات احترام لري. په دې ترتيب زموږ ژوند تولهٔ يا کثره برخه په غربي ډول اوښتی ده چې ددين ارزښت او دانساني ژوند کرامت او شرافت بيخي نه پيژني.

# دښځې دازادې قضيه

دفکري جګړې تر تولو وسائل توانا وسيله او لنده وسيله چې ژر وهدف ته رسيږي او ترټولو زياته خرابوونکې سلاح او تر ټولو زوروره جګړه چې داسلامي ټولنې دغورځولو او داسلامي ټولنې دبنسټ متذلذل کولو لپاره تر لاس لاندې نيول سوي ده دښځې موضوع ده چې په داسې بڼه ئې رامخته کړې ده چې ګويا اسلام دښځې په حقوقو کې ظلم کړی دی. او حقوق ئې تر پښو لاندې کړي دي دازادې او په ټولنه کې دفکر او رايې ورکولو څخه بې برخه سوې دي. ددوی دغه درواغجنه دعوه دقانوني دليل پر بنسټ نه ده ولاړه. دصليبي رخې او يهودي چل څخه پرته بل چل نسته. صليبان او يهوديان چې

داسلام په وړاندی دهر ډول تور څخه مخ نه اړوی په بشریت کی دتاریخ په اوږدو کی راسی دین او شریعت داسلام او اسلامی ټولنی په څیر نه دی ښکاره سوی چی ښځی ته ئی داسی ښائسته حقوق ورکړی وی چی دهره پلوه دی ئی ټول حقوق پکښی ساتل سوی وی.

داسلام سپیڅلی دین په پوره تمامیت سره دښځی لپاره دملك او تصرف ددې په ټولو مملوکاتو کی ورکړی دی او ددی شخصیت ئی دټولو تصرفاتو او حقوقو داهلیت څخه برخمن گرځوی دی الله ﷻ فرمائی:

**لرجال نصیب مماکتسبواولنساء نصیب مماااکتسبن.** (سورة نسآء (۳۲))

**ژباړه:** نرو لره هغه څه کی ونډه سته چی لاسته ئی راوړی دی او ښځولره په هغه څه کی ونډه سته چی دوی لاسته راوړی دی. همدا ډول اسلام وښځو ته په عادلانه ډول حقوق ورکړی دی. لکه څرنگه چی ئی نارینو ته ورکړی دی په هغه ډول دښځو وحقوقوته هم قائل دی ددی پرته چی ډیروالی او لږوالی ته نظر وسی. ځکه الله ﷻ فرمائی:

**لرجال نصیب مِمّاترک الوالدان والا اقربون وللنساء نصیب مما ترک الوالدان والا قربون مما قلّ منه او کثر نصیباً مضروراً** ط (سورة نساء _ ۷)

**ژباړه:** نارینو برخه ده هغه مال کۍ چۍ دمور او پلار قریبانو څخه ئۍ پاته سوی وی او ښځوته برخه ده په هغه مال کی چی ددی دمور او پلار دقریبانو څخه پاته سوی وی. لږ وی که ډیر وی هر یوه ته ټاکلی برخه ده. علوه پر دی اسلام وښځی ته نظر ښکاره کولو او رایې ورکولو حق ورکړی دی او دی ته ئی

صلاحیت ورکړی چی دامام پـه تهاکلو داعتماد یا مخالفت رایـه روکړی او دنارینوو په څیر دژوند سره نوشت وتهاکی. داموضوع ثابتـه ده ځکه کله چی عبدالرحمٰن بن عوفؓ دشپږ نفری کمیسون رئس وتهاکل سو وروسته تر دی چی آمر المؤمنین حضرت عمرؓ شهید سو نو دټولو خلګو څخه یې یعنی نرو او ښځو، ځوانانو او سپین ږیرو څخه ټول پوښتنه وکړه، کور پـه کور درایو ټولو لپاره وګرځیدی. چی دالوی مسؤلیت دامیر المؤمنین عمرؓ تر شهادت وروسته چاته ورکول کیږی؟ ددې ترڅمګ داسلام دین وښځی دزده کړی حق ورکړی دی چی پـه ډیر احادیثو او روایاتو ثابت دی همدا ډول کـه فقـه تـه وګورو ویلای سو چی دامهات المؤمنین عائشیؓ او نورو څخه زیات شمیر حدیثونه نقل سوی دی. داټولی خبری دښځی دمقام درنښت انځوروی. داسی نو دښځی ددرنښته په اړه ډیر مثالونه سته چی دټولو بیانول پـه دی ځای کی شونی نه دی. لدی امله په دغه پیمانه بسنه کوم او اصل موضوع تـه راځم چی دښځی دقضیې څخه عبارت ده او ددې موضوع عنوان ورتـه خاص سوی دی. کوم کسان چی دښځی ګران عزت ارزانه کوی چی اسلام ورکړی دی هغه غربی مشرقین او یو شمیر مسلمانان دی چی داسلامی شریعت څخه هیڅ دپوهی برخـه نـه لـری او دغربیـانو دلاس آلـی دی. تـر ټولـو لـوی جفـائی دمحمـدی سپیڅلی شریعت سره کړی ده اودخپلو بٰ پنسته ادعاؤ په لؤړ کښی وائی چی اسلام ده ښځی سره تیری کړی دی قـرآن کـریم ښحو تـه لږ حقوق وکړی دی او دنارینـه ؤ سـره ئـی برابـر حقـوق نـه دی وروکړی او ښـځی تـه ئـی دمیـراث او

شاهدی په ثائلو کښی دنارینه نینمائی حق ورکړی دی. نارینه ته ئی تریوه ښځی پلا دنورو ښځودواده حق ورکړی دی ښځه داسی نه ده په همدی ډول مستشیریقین په سلهاوو دا وی دښځی دازادی په چوکاټ کښی کوی ددوی په آند موږ دښځو غصب سوی حقوق ورکوی او مرستی ورسره کوی ځینی دغرب گوډاگی مسلمانان ئی داسی دعوی تاپئه کوی لومړی کس چی ددی دعوی بیرغ ئی ورپاوه او دمسلمانانو دښارو په منځ کښی ئی ددی لوی فتحی تخم وکری ځوان مصری قاسم (امین) ووهه غربیانو دده دلیاقت او ذقاوت په نظر کښی نیولو سره فوق العاده تعلیمی برس ورکړی او دفرانسی په پوهنځیو کښی ذده کړی وکړی دفرانسی ځخه بیرته ستنیدو وروسته په سیمه کښی ئی دغرب تبلیغاتو ډول او سرنا پیل کړل او دیوه لاس پر نام مرئی په حیکر ئی دیهودی او نصرانی بادارانو په ژغ سره ئی ودی ناوړه کارته اراده وکړه او دفرانسی ځخه تر بیرته ستنیدو وروسته دغه کار رسماً پیل کړی او دین کتب ئی دښځی دازادی په نامه ولیکی ورسته ئی دنوی ښځی په نامه ئی بل کتاب ولیکی چی وهغه کار ته ئی نقویت وروبخښه وروسته دغه کار کرغیړنی اغیزی وکړی او په مصری ټولنه کښی ئی ځینی ملاتړ پیدا کړل. لومړنی ښځه چی دغه دعفت اوشرف ضد دعوت ئی ومانه هادی شعراوی وه چی دهغه ښځو مصرری مدوی او بیله حجابه وی لیدنی ئی ورسره کرلی اودنر اوښځو گډو مجلسو ته حاضری دنر او دښځی انسانی او اسلامی کرامت ئی تر پښو لاندی کړی او پرده کول چی دعربو ارزښتمند عادت وو په وحشانه

ډول ئی وغورځول دیادونی وړ ده چی دغربیانو دغه لسی کرغیړنی او ناوړی کړنی هرځومره چی ډیریږی او ځینی سست عنصری مسلمانان هم ورسره مله وی ځای نه نیسی ځکه دمسلمانان ښځه مظلومه او محرومه نه ده چی دمرسته کونکی لته دی وکړی اسلام ئی ډیر لږ حق هم نه پریښی چی دالته پسی وکړی او مبارزه دی پسی وکړی مسلمانی ښځی داهانت او استعباد شکنجه نه ده لیدلی او نه ئی پیژنی چی دجهالیت ددوری ښځو او معاصرو ښځو لیدلی دی په همدی ډول ددغه موضوع پر څرګندولو او څنګوالی باندی منافتنه کول ته غواړم ځکه ټول پوهیږی چی دښځی قضیه ددوی داساسی اهدافو پای نری بلکه ددوی هدف دټولو اسلامی اخلاقو لمنځه وړل دی داسلامی ارزښتونو نړول دی او مسلمان امت درذالت او فساد به ګرداب کښی غورځول دی دوی غواړی چی مسلمانه ښځه دغربی ښځی په څیر دخپلو محرومو حقوقو څخه بی برخی کړی او هرڅوك ددی بی اجازی ګټه ځنی واخلی او دیوه سامان په میکر ئی دبی پوائی وبازار ته وغورځوی هغه ناپوه دعوت چی دښځی دازادی په پوښ کښی مطرح سویدی دډیروی مرحلو ډول، ډول مزاهرو او اهدافو کرونکی دی چی په لنډ ډول عبارت دی له:

# دښځې حجاب لیری کول

یقیني خبره ده چې اسلامي شرکت دمتواتر حدیشو په رڼا کښې وښځو ته حجاب امر کړی دی او لارښوونه ئې کړې ده چې ښځې باید خپلې ښکلاوې وشرعي معارمو پرته بل چاته ښکاره نه کړي لکه چې الله ﷻ فرمائي:

﴿یا ایها النبي قل لازواجک وبناتک ونساء المؤمنین به نین علیمن من جلا یمین ذالک ادنان یعرفن فلا یؤذین وکان الله عفوراً رحیما﴾

ژباړه: ای پیغمبره خپلو میرمنو، لوڼو، او دمسلمانانو ښځو ته ووایه پوړنې پر خپلو ځانونو راکش کړي دالږ هغه کار دی چې دوی دپیژندل سی او ضررونه رسوی الله ﷻ بخښونکی او رحم لرونکی دی. اسلامي حجاب او پراح یو لړنی چې ښځه دسره ځخه تر پښو پوري پټه وي دایو داسې ښکاره کوونکی او شعار دی چې په مټ ئې مسلماني ښځې دنورو ناوړه ښځو ځخه بیلیږي ځکه الله ﷻ فرمائي:

قل للمؤمنٰت یغضض من ابصارهن ویصفظن فروجن ولاینبدین رینقن الا ماظهرا منها ولیضربن بضمو هن علی جیوبهن ولایبدینزینتهن الا بعولتهن او ابائهن او اباء بعولهن.

ژباړه: ووائې منافقو ښځو ته او هواداري دلیدلو ځخه خپلې سترگې پټې کړي پاك لمنې اوسې دا اړتیا دځایو پرته خپلې ښکلاوې مه ښکاره کوي په خپلو سینو پوړنې راکش کړي دمړو، پلرو، خسرانو پرته بل چاته خپل زینت مه ښکاره کوي. دپورتنیو نصوصو او نورو پاته نصوصو پر بنسټ چې دغه

بنسټيز اسلامي شعار تائدوي دشتون سره ئې قاسم امين ترې منکر دی ټول
هغه نصوص نفې کوی چې دښځې حجاب ترې ثابتيږی او په بې حيايۍ ډول
سره وائي چې مسلمانانو دنورو خلګو دپيژندلو څخه وروسته دحجاب په
مسله پوه سول او تر خوښونې وروسته ئې په خپل ژوند کښې ئې عملاً پلی
کړل وروسته ئې ددينې مسائل يو جزوګانه او سره ددې چې حجاب مسئله
دديـن سره هيڅ اړه نه لری او حجاب يواځې دپيغمبرﷺ دښځو لپاره وو نه
دنورو ښځو پـه اړه نومـوړی پـه خپـل کتـاب (دښـځې ازادی) کـې وائـې کـوم
حجاب چې په اسلام کښې راغلی دی يواځې درسول اللهﷺ دښځو لپاره دی که
چيری په سرعت کښې نه کی پيدا چې داسې حجاب تری ثابت سی لکه اوس
چې ئې ځنې مسلمانان کوی رېښتيانی خبره داده چې حجاب کول د دود په
ډول پاته سوی دی او مسلمان ملتو دګډيدو وروسته ديو نيك عدد په بڼۀ پاته
سوی ده دده په آند اسلامې حجاب دښځې پر فطری ازادی قيد لګولی دی
ميـړه او ښـځه بامؤدبانـه او مناسب ژونـد دنعمت څخـه ئـې برخـی کـول دی
نوموړی کتاب کښې دعين مطلب دڅرګند تيا په موخه وائي: هغه تاوانونه
چې داسلامی حجاب څخه زيږی دښځه فطری ازادی تر پښو لاندی کول دی او
دښځې دتربيې جيلو نيول دی دشهرت زياتول دی چې له امله ئې زنا منځ ته
راځی اولس نو دهدی شعاراوی دفاسدونکې يا زيوو صحنې پيل ليږی کله
چې دا د (۱۹۲۳ـم) کال دروم دښځو ديوی غونډی څخه راستانه سول دی
دخپل ملګری سزا سره مل اسلامی حجاب پر مځکه وغورځاوه او عامو

خلگو په وړاندی وخپل دا فت او اسلامی حجاب پر ضد باندی ئی توطیو چی مشری ئی سعد زغلول په غاړه درلودل تریو بریده مخ په وړاندی ولاړل او په دی لارکښی زیاتی ښځی دنیل دودانی په وړاندی ځرگندی سوی او اسلامی حجاب ئی پر مځکه وغورځاوه او دپترولو په پائلو سره ئی اسلامی حجاب او جای سوځلی او په یوه اواز یی ناری کړلی چی ښځه ازاده سول. په همدی ترتیب زیات شمیر چلونه او دسیسی په اسلامی نړی کښی وشیندل سوی او د اسلامی نړی دپوهنځیو ریسانو حجاب کونکو پیغلانو په پوهنځیانو کښی دنه شتون ږغونه پورته کړل چی بلکی ئی په اسلامی هیوادونو کښی لکه مصر، المغرب، تونس، کویټ او ځینو نورو کښی تر سترگو کیږی.

# وگړو زده کړو ته بلنه

د اسلام مبلین دین دیو وانتعی دین په عنوان په ښکاره چی هر څومره یوه ټولنه ولوړو اخلاقو، ایمانو او ارمانونوته رسیږی اړینه ده چی دلارښونو لخوا اداره سی تر څو ښوونکی وتوانیږی چی ټولنه دمفاسدو څخه وژغوری په همدی لړ کښی د اسلام سپیڅلی دفتنو دمخنیوی، شیطان دنفود او داسلامی ادابو اوارزښتونو دساتنی په موخه دتورو او ښځو دگډی زده کړی څخه په کلك منع کړی ده مگر غربی گوډاگیان په اسلامی جامه ددوی دهوسائی او ارمتیا موجب نه گرځی خلگ ددؤ جنسو یعنی نر او ښځی گډی زده کړی ته رابولی او یو دبل لپاره مزاهمت دژوند په ټولو چارو کښی

غواړي. دغه غوښتنونکي دغه کار دمدرسي او مکتب څخه پيل لوی او دڅوند په ټولو چارو کښې ئی خوشي کوی همدا وجهه ده چی دټولو اسلامي هيوادونو په ښارونو کښې ليدل کيږی چی په ښوونځيانو کښې نر او ښځې يو ځای زده کړې کوی همدا ډول په ټولو دولتي او غير دولتي ادارو کښې ښځينه ماؤمورينې ليدل کيږی داخلاقو شيرازياو انساني ارزښتونه لمنځه تللي دی او بشري جامعه دهلاکت په سيند کښې غرقه سويده او اسلامي امت دتور بخت په پرده کښې دسقوط وخواته دحرکت په حال کی دی.

# دکور څخه دښځې وتل دکار له پاره

لکه څرگنده په اسلامي شريعت دښځې او لاد دنفقې هځی او زيار دنارينه پر غاړه پريښې دی دښځې مسؤليتونه او وضيفې ئی معلوم کړې دی او هغه عبارت لدی څخه دی چی ښځه بايد دخپل خاوند عزت، ابرو او شرف وساتي دکور سره مرستي وکړی ځاني او رواني ارامتياوی دده لپاره جوړی کړی خپل اولادونه ددين پر نيکو اخلاقو تربيه کړی او دعزت، کرامت او په مځکې کې دقهرماني مفهومونه پکښې وکرې نو ددی خبری پر بنسټ باندی دښځې اصلي کار او فعاليت دکور سره مرستي او داولادونو تربيه ده هغه اولادونه چی دساتني،امانت، دين او داسلامي مقدساتو دفاع پر خپلو اوږو واخلي اوددولت کولو دروند بار پر ځان تپی او دملتونو قيادت دترکی پر لوربيايي

که چیری ښځې د کورنې ګرمه فضاء د کار په موخه پرېږدي ددې پرورښت په څوك پر غاړه اخلي؟ سره ددې چې اللهﷻ فرمائي:

**وفرن فی بیوتکن ولاتبرجن تبرج العاهبلیه الاولی)**

ژباړه: په خپلو کورو کښې پاته سې او دلومړنۍ جاهلیت په څير دخلګو په منځ کښې مه څرګندیږی ددې ډیر اهمیت سره سره بیا هم اسلام و ښځې ته داړتیا په صورت کښې چې د شرعی اصولو سره برابره وی ددباندی وتلو منع نه کوی په دی شرط چې ددې وتل دفتنې او انصراف سبب نه ګرځي داپه هغه صورت کې کیدای سی چې ښځه په پوره حجاب کښې دباندې ووځی او دهغه ډول ارزښتونو څخه ځان وساتي چې جنسی اعرایزی تهریکوی او دلاری په اوږدو کښې دخلګو سره کډه نسې او ددې لپاره خلګ هیڅ ډول مزاهمت ونکړی دا یو ښکاره خبره چې دداسی عمل باید سړی وکړی چې عقل او فکر سره برابرو ی څومره ښه بیان دی هغه چې رسول علیه السلام دجهاد یه لوری حرکت کاوه دخپلو پاکو میرمنو په منځ کښې ئی کوره کشی کوله دهری یووی نوم به چې وخاتی هغه به درسول اللهﷺ سره جهاد ته تلل همدا ډول درسول اللهﷺ په څیر غالباً صحابؤ کرامو رضی الله عنه هم خپلې ښځې بیلولې دپاملرنې وړ ده چې په جهاد کښې دښځو ونډه اخیستل او دکور څخه وتل په پوره ډول داسلامی روحئ ادابو او اخلاقو سره برابر صورت نیولای سی او دجګړی په ډګر کښې ددې دنده دټپیانو درملنه او پوښتنه ده دهمدی خبری پر بنسټ باندی زموږ په دین کښې دنظر زیات پراخوالی سته مګر سرحدونه ئی معلوم دی او دهغه

سرحدونو څخه تیرکول وهیڅا تـه اجازه نسـته ددی سره، سره دغـرب دعـوت کـونکی دښـځی دازادی دشـعرا په عنـوان دښـځی دوتلـو او دکـورني دنـدود پریښودو پلان لری چی په مټ ئی ښځی دنورو په کارو کښـی مزاهمت وکړی دشك پرتـه پـه اوسنی وخت کـی دکوره څخـه دښځو وتـل او پـه پـروا ډول پـه ځلورو دیوالو کښی داولادونو پریښـودل پـه خپـل امانت کښـی خیانت دی او دکورنی سره خیانت دی ددی خیانت کولو ترڅنګ دخپلو دندو دمسئولیتونو دپریښوولو په نتیجه کښی دفامیلی قـانون بربادیدل دی او دخپلـو او لادونـو دروزنی، دنظام ګډوډیدل دی همدا ډول دفامیل سوکاله ژوند لمنځـه وړل دی په هر حال داټول هغه وسائل دی چی دمسـلمانانو تـاړاك کولـو، داسلام دچپـه کولو او دټولنیز ژوند دګډوډ کولو لپاره دهغـه تګ لاری سره برابر طـرح سـوی دی چی دځای او وخت شرایط ئـی پـه نظر کښـی نیـول سـوی دی چی الله ﷻ پـه خپل کار کښی ډیر غالب دی ځکه الله ﷻ فرمائی:

**تبلون فی اموالکم وسعکم وتسمعون مـن الـذین او تواللتـاب مـن قبلـتکم مـن الـذین اشرکو اذا کثیراً وان تصبرو او تتقوافان دالک من عزم الامور.**

ژباړه: خامخا به ازمسیل کیږی په مادو او ځانو خپلو کښی او تاسو به ډیری بدی خبری اوری دهغه کسانو څخه چی ستاسـو وړانـدی کتـاب وړل سـوی دی او که تاسی صبر وکړی او تقویٰ وکړی نو بیشکه داکار دټینګـو کـارونو څخـه دی په بل ځای کښی الله ﷻ فرمائی:

**ولایزالون یقتلونکم حتٰی یردوکم من دینکم ان استطاعوامن یرتدد منکم من دینه قیمت وهو کافر فاولٰیک حبطت اعمالهم فی الدنیا والاخرة واولٰیک صحاب النار هم فیها خالدون.**

ژباړه: او تل به دوی جنگیږی ستاسو سره تر هغه بریده که چیری دوی دتوانیږی او که ئی ځوك ستاسو څخه دخپله دینه ولاړه نومړه سوه او حال داچی دی کافر وو اونو هغه کسان دی چی دنیا او اخرت ټول عملونه ئی بربادیږی او دغه کسان به داورځبنتنان وی او تل به په دی اور کښی وی.